# لومړی فصل

هغه اسلم نومیده ، دوه ویشت کلن زلمی او د ښې ځوانۍ او روغ صورت خاوند ؤ . د اندراب په دره کې د « کوز صیاد » کلي ته نیږدې یې د کروندې لس جریبه ځمکه لرله . غنمو یې ښې دانې نیولې وې . له دریو غواګانو نه یې دوه لنګې وې او کروند ګره یې د مني کښت ته ښه برابره وه . د یویې غویان یې مزي او پیاوړي وو . او د سپرلو آس یې په صیاد کې شهرت پیدا کړی ؤ .

اسلم به له سبا نه تر ماښامه پورې لګیا ؤ ، د کروندې په پولو او لښتیو کې به یې کار کاوه . او د خپلې ځمکې شاړه او بنجره برخه به یې ، چې پخوا خوړ لاندې کړې وه ، کروندې ته برابروله . په ژمی کې به چې د وزګارتیا موده شوه د غرڅه وو او زرکو په ښکار پسې به ووت او په شپو ورځو به د غرونو په درو او ګړنګونو کې د ښکار له ملګرو سره ورک و . کله چې به واورې زیاتې شوې او د ښکاریانو د راګرځېدو لارې به یې وتړلې ، هغوی به د غرونو په سمڅو او ځنګلونو کې دونو ترچتریولاندې ټاټوبی کاوه. پتیرې ، ستوان ( تلخان ) او د ښکار غوښې به یې خوړلې او کله به چې له غرو او کمرونو څخه وریځې پورته شوې او بادونه به ودرېدل اسلم به دښکاریانو د کتار په سر کې خوځېده او منډ به یې ماتاوه . هغه له خپلې جسمی پیاوړتیا او ځیرِوالي سربېره ډېر لطیف او حساس روح درلود ، د طبیعت ښکلا او د غرونو ابهت هغه لکه شاعر او فنکار تر خپلې جاذبې لاندې راوستی و . کله به چې د غرونو آسمان ښکلې شو او وریځو به په څوکو او کمرونو باندې برجونه ودرول او دلمر دوړانګو ګلونه به یې په کې خواره

واره کړل ، اسلم به ډوب او حیران ورته ناست ؤ او ورته کتل به یې. لوړو ژورو ، آبشارونو او د غرونو د پا سه د طبیعي شنیلیو او گلونو چمنونو د هغه په سترگو کې یوه تلوسه ، یو تکل ، یو ښایسته اضطراب او ښکلا پیدا کوله ...

دا څومره ښایسته دي . خدایه ما ته روښانه سترگې ، تیز غوږونه او د آئینې غوندې زړه راکړه ، چې په هر څه کې تا ووینم او تا واورم .

د « صیاد » اوسیدونکو او گاونډیو بزگرانو ا سلم ته په درنه سترگه کتل. په هغو مرکو کې چې غرمه مهال به یې د صیاد د ځوانانو د کلي په دمه ځای کې د ونو تر سیورو لاندې کولې ، د اسلم نوم به په تکرار یادېد ه .

هغه د کلي زلمیانو ته د مېړانې ، ملگرتیا او د وزلوبې ( بزکشی ) او ښکارد میدان یو غوره ساری او د مسافرو په خدمت او د جومات په پاللو کې تر هر چاتکړه و. د کلي سپین ږیرو د اسلم پټه خوله ، خیر خوښونه ، تواضع او پاکي خوښوله او هغه به یې په مړي ژوندي کې ستایه .

اسلم ځینې داسې ځانگړي خواص لرل چې کلیوال یې د ده په باره کې درناوي او مهربانۍ ته اړ کول . دې به د ماښام په لمانځه کې تر ټولو لمونځ گذارانو وروسته له جومات څخه راووت ، که به جومات ته مسافر راغلي وو ، ده کورته تر تگ وړاندې د هغوی لپاره په کلي کې ډوډۍ راټولوله . کله به داسې هم کېدل چې په کور کې به یې لنده مړې لرله یو دوه تنه مسافر به یې خپل کاله او دسترخوان ته را بلل، د اوداسه اوبه د خوب کمبله او سروېړ دي به یې ورته راوړل ، سبا ناری به یې ورکاوه. د مړیو په تد فین او تکفین کې به یې برخه اخیسته او تر هر چا د مخه به له یوم او کلنگ سره د کلي هدیرې ته روان و . ترخه

خبره يې چا نه وه اوريدلې او پخپل خدمت او ځوانمردۍ باندې په ټولو کليوالو ګران و .

د کلي نجونو به کروندې ته د تګ راتګ په وخت هغه لار څارله چه اسلم به په هغې باندې ته راته . هغوی به هڅه کوله چې ده سره په لارکې مخامخ شي او په يوه وړه له وړو د ده پام ځانته را واړي . يوه ورځ فيروزه د هغه څنګ ته ورنيږدې شوه او په ربړديدلې آواز يې ورته وويل : اسلمه زه خو دې لېونۍ کړې يم ، يو وار خو راته وګوره لار تر پايه تشه ده . هيڅوک به تا د ديدار په ګناه ونه ترټي يوه تشه خبره خو راته وکړه ، آخر ته له چا ډارېږې ؟

اسلم رډ رډ فيروزې ته وکتل او وې ويل : زه له خدايه ډارېږم . ما ته په لاره کې مه درېږه !

فيروزې په مينه مينه اسلم ته وکتل نرۍ موسکايې په شونډو وځغليده ، بيا يې اسلم ته وويل : مينه خو د خدای له لوري ده ، هغه دا اور ما ته راواچاوه او ته يې زما زړه ته را ننه ايستې ، لږ انصاف خو راسره وکړه .

د اسلم زړه له دې خبرې سره وبرېښيده . فيروزې ته يې وکتل . شنې سترګې ، خواره واره ګاڼ ګوتي ويښتان ، پراخ تندی ، تړلې ورو ځې هسکه غاړه اور بلوونکي کتل او تر دې پورته يوه رڼا ، داسې رڼا چې اسلم سر تر پښو په هغې کې ډوب شو . ورويې له ځان سره وويل : خدايه ما وساتې ، ما ته مقاومت او د زړه تسکين راکړې .

نه ، نه نه يې درکوي ، ته مين شوی يې ، زړه ستا له واکه ووت او عشق د دغه کور خاوند شو . هغه خپل څراغ دلته ولګاوه .

پس له دې ورځې به اسلم پر لارو ځوړند سر او مات ورمېږ تېرېده او له نجونو څخه به يې لار جلا کوله . د کلي نجونو کرار کرار د اسلم

او فیروزې مینه د ځوانۍ د رنګینو خیالونو داستان کړه . او په هغوی پسې یې د خپلې خوښې قصې او افسانې جوړې کړې .

د پیغلو تر مینځ آوازه وه چې د اسلم مور سل کلمه دارې روپۍ کونډه کړي دي او د خپل زوی د کوزدې لپاره یې امیل ترې جوړ کړی دی . ځینو ټوکمارو نجونو به په مسخرو کې د اسلم د مور د کلمه دارو رو پیو په امیل سوګند خوړ او ویل به یې : که ما دا پلانې کار کړی وي د اسلم د کلمه دارو روپیو څخه دې بې برخې شم .

د اسلم د امیل قصه دومره اوږده شوې وه چې حتی د صیاد څخه د باندې کلیو نجونو هم د هغه هوس کاوه . په زلمیانو کې بیا د اسلم ښکاري ټوپک ، د برکې ښکاري لنډی چکمن ، برزو او د وزلوبې آس نوم ایستلې ؤ . ډېرو به ویل : دا برزو او چکمن څومره ښه پې ښکاري ! اې بختوره .... خو د خدای داد دی چا ته یې چې ورکوي نو ورکوي یې ....

اسلم به چې د باندې و ووت نو مور به یې د کور په وره کې سپیلنې ورته ولوګول او خپله دایمی دعا به یې تکرار کړه :«خدایه له بدو سترګو او د ظالمانو له څپېړو یې وساتې !» د اسلم مور یوه شپه خپل زوی ته چې نازاوه یې په مرکه کې وویل : ګرانه زویکه راځه د مور دې ومنه . کوزده وکړه . زه اوس بوډۍ او رنځوره یم . هسې نه چې مړه شم او ستا د کوږدې ارمان ګور ته له ځان سره یوسم . تېره شپه مې خوب لیده چې ته په سپین آس سپور یې خورجین دې تر شا تړلی وي او له کلي مخ په ښکته روان شې ، زه ډېرې نارې در پسې وکړم خو ته مخ نه را اړوې او د باغونو په تاو را تاو کې له سترګو الونیا شې . اسلم سر د مور له زنګانه را پورته کړ او په کټ کټ یې وخندل او بیا یې مور ته وویل :

ستا له خوبه خو معلومېږي چې زه له صياده تلونکی یم نو کوږدې ته څه حاجت !

دې وویل : نه زویه ، نه داسی نه ده ، سپین آس د نیکمرغۍ علامه ده او ستا تګ دا معنی لري چې زه به مړه شم او ته به جلا شي .

راځه زویکه د مورکۍ دا یوه خبره دې ومنه . چې دا ستا ښادي وگورم بیا بل ارمان نه لرم . که بیا مړه شم پروا نشته !

اسلم یوه شېبه په فکر کې ډوب لاړ ، بیا یې سر را پورته کړ او وې ویل : مورې کوږده خو پیسې غواړي ، خرڅ غواړي ، دود او دستور غواړي او موږ خو غریبان یو .

دې ورته وویل : نه زویه غریبان نه یو ، شکر څمکه ، ودان پټي ، غوایی او سخوندران لرو ، دا خو ټولې پیسې دي . گانه هم پیسې نه در څخه غواړي . یو د کلمه‌دارو روپیو امېل ، یوه د سپینو زرو او فیروزې گوته مې لا وخته ستا نجل ته ساتلي ده . یو د سوف کمیس او یو بل د کناوېز کمیس چې ستا خدای بخشلي پلار زما د واده لپاره جوړ کړي وو ، لا تر اوسه نوي سوچه په سندوک کې پراته دي . آس او ټوپک دې د ولور روپۍ پرېکولای شي . شکر فصل هم سږ کال ښه دی د واده خرڅ پې برابرېږي . د غوښو لپاره به یو سخوندر حلال کړو . کوزده او واده خو نور نو څه باچایي خزانه نه غواړي ؟ راځه زویکه د خپلې بوډۍ مور خبره ومنه . زړه به مې درنه خوښ شي ، دعا به درته وکړم .

اسلم د خپلې مهرباني مور خبرې واوریدې . په ژورو اوږدو اندیښنو کې لاړ خو موریې د ده.داند ښښنو لړۍ ورلنډه کړه او ویې ویل ؛

زویه ! ولی ډوب لاړې ؟ اسلم موسکی شو او خپلې تورې غټې سترگې یې مور ته راواړولې او وې ویل : پرون ملا صاحب په جومات

کې مسألې کولې او ویل یې:جنت د مور او پلار تر قدمونو لاندې دی . مورې زه وبربړم ، هسې نه چې ته را څخه ناراضه شې او زما دواړه خطا شي . تا زما ډېرې خوارۍ ګاللې دي . تا خپله ځواني زما لپاره خاورې کړه . زه دې وساتلم، وروزلم او لوی دې کړم . د خلکو ترخې خبرې ، پيغورونه او تومتونه دې وزغمل . د ژوند په دې ټولو ستوغو سپورو کې دې خپله لمن پاکه وساتله ، دا ټول د دې لپاره چې ستا زوی لوی شي او واده وکړي . خو زه اوس لوی شوی یم . هغه یتیم چې په یو کلنۍ کې يې خپل پلار بایللی ؤ لوی شوی دي ، باید کوزده وکړي. ما ګمان کاوه د واده به نه یم ، خو ته چې ما د واده بولې د واده یم ، دا ځکه چې میندی رښتینډويې وي او درواغ نه وايي ، مورې زه بې له تا نه څوک لرم ؟ زما واک ستا دی ، زه په خپله هم ستا یم . ته پخپلې شتمنۍ باندې هر څه کولای شې . که زه له تا سره بد وکړم او ودې نه منم دواړه به مې خطا شي .

د اسلم خبرې پای ته ورسېدې . موریې متې ترې تاو کړې او خپل زلمي زوی يې په غېږ کې ونیو او ورته په ژړا شوه. د اسلم سترګې هم د اوښکو څپو پټې کړې د خوښۍ په ژړا کې له مور سره ملګری شو . زموږ د وطن نا مېنده میندې خپل تېر غمونه او ترخه یادونه داوښکو په څپو وینځي او په ژړاوو ځان تسلي کوي .

د مني لومړۍ ورځې وې چې د صیاد په کلي کې جومات ته نږدې لوی چواني دیګونه بار شول . د کلي ملک او مشران د اسلم دکور له چمبر سره به برګو لیمڅیو ناست وو او مرکه يې سره کوله . د صیاد د کلي په ختيځه خوا کې ، دوزلوبې میله روانه وه ، ماشومان او بوډاګان د نږدې کورونو په بامونو ختلي وو او دوزلوبې ننداره يې کوله .

د آسونو شیشني او د منډو دربې د کلي فضا ډکه کړې وه . دغرونو په څوکو باندې تورې او درنې وريځې را پيدا شوې وې او سره له دې چې د بارانونو موسم نه و ، کله به د تالندې درزا د غرونو چوپيا ماته کړه او زړونو ته به يې ويره ورننه ايسته . د کلي بره خوا دسين په غاړه د ګلدا ر له کوره د شځو او نجونو د سندرو او دريا غږ پورته کيده . کله به د سندرو غږ د پيغلو د خندا په شور کې ورک شو او شيبه پس به بيا لکه لويدلی موج را پورته شو .

د ګلدار د کور په ستره کوټه کې د کلي پيغلې راټولې شوې وې ، فيروزه د کوټې بر سر په ښکلو جاموکې ناسته وه او همځولو پيغلو ټوکې ټکالې پې کولې . نامزاده نجلۍ لکه ګل غوړېدلې وه په شونډو يې د خوشحالۍ مسکاوې تلې راتلې، ګريوان او لستوني پې تر پاوليو لاندې درانده شوي وو ـ او وريښمين ګنډ يې د خوشالۍ په اوسيلو کې پر سينه باندې کښته پورته ځنګېده ، په سر يې د سپين ململ پړونی داسې اچولی ؤ چې ځنځيري وېښتان يې يوې او بلې خواته ترې راوتلي وو . نن د فيروزې د پښارتي خوشي وه . دا پخوا د ګلدار غوندې سړي لور بلل کيده خو اوس د اسلم غوندې زلمي نجل هم ده ، يو کال وروسته به همدې ښکلي زلمي ته ورودېږي .نيکمرغي خو هم داوي.

په خلکو کې داسې آوازه وه چې دا پخوا هم په اسلم باندې مينه وه او څو څو ځلې يې د خپل عشق په باب همزولو نجونو ته راز ويلی و مګر د خپل پلار له ويرې يې خپله مينه پټه ساتله .

په راوروسته وختو کې د دې د مينې داستان لږ رسوا شوی ؤ او دکلي ښځو په دې باب غوږ وهنې سره کولې ، خو د نن ورځې مراسمو د فيروزې په رسوا کيدونکي عشق باندې پرده وغوړوله او دايې د خلکو له خولې نه خلاصه کړه .

د کور بلې خواته د تناره په کوټه کې د وریجو تر دیگي لاندې د ارچی وچ لرگي سوځېدل او په لوگجنه کوټه کې يې سپرغۍ شيندلې . د کوټې بره خوا د گلدار دوه ميرمنې د يوې رنځورې بوډۍ سر ته ناستې وې او ډاډگيرنه يې ورکوله . د اسلم مور ډېره ناروغه وه او ځگروېده . دې د گلدار په مشرۍ ميرمنې باندې سپارښت کاوه چې اسلم د واده په وخت کې ډېر و نه ځوروي او هغه لکه خپل سکنی زوی وبولي . کله وار به يې مرۍ ډکه شوه ، خبرې به يې وشليدې او غټې غټې اوښکې بې له ستر گو راتوی شوې . د گلدار ښځې به د خپل تور پړوني په پيڅه د اوښکو دانې د هغې له غمځپلو ستر گو نه راټولې کړې او ډاډ گيرنه به يې ورکړه ، خو د دې د سويو اوسيليو او سرکشو اوښکو کاروان کرۍ ورځ د پېغلو له سندرو او نڅاوو سره ملگرتيا وکړه . گوره چې څه کېدونکی وو او د گونگ مستقبل په گيډه کې څه روان وو ؟

شپه نيمايي ته رسېدلې وه او د اسلم د ښنارتې مراسم تېر وو . د لرو برو کليو سپرو د درو په مينځ کې پيچلې لارې نغاړلې وې او تللي وو . د سين په غاړه د صياد د بزگرانو ډېوې تپې شوې وې او د هيڅ ژوندي ساري آواز نه اوريدل کېده . يوازې د اسلم د کوټې ډيوه رڼه وه او د کوټې له کړکيو څخه د اسلم د مور کمزوري ځگيروي راواته او د باد په چيغو او شور کې ورکېدل . د برېښنا او تالندې يرغلونو د اندراب ښکلې دره د قهر او غصې په منگولو کې رانيولې وه . آسمان تر خونړيو تورو وريځو لاندې پټ شوی ؤ .

زوره‌ور باد چلېده او د سين دغاړې د ونو په څانگو کې يې ويروونکې انگازې خپرولې . شپه به وروستۍ شومې ته رسيدلې وه چې زوره‌ور باران راغی ، داسې زوره‌ور چې لکه آسمان راسوری شوی

وي .

د برېښنا غاښ چيچنو ، د تالندې غصې او د باد شپېړو د غرو له ناووڅخه د کليو پر لور د سيلاوونو ښاماران را خوشي کړل . د اسلم د کور ديوالونه ولړزېدل او د کوټې د کوچنۍ دېوې لمبه په ګډېدو شوه .

د کلي خلک راويښ شول او له چيغو نارو سره بامونوته وختل . د سيلاب کوکې ، د خلکو چيغې او د باد هيبت سره يو شول . د صياد د بزګرانو ښايسته کلي يې ورېږداوه او نامېندوونکې ويره يې د خلکو ګوګل ته ننه ايسته او کليوالو دڅغورنې صلاتونه پيل کړل .

سهمجنه شپه تېره شوه . سبا ته په اندراب باندې روڼ او طلایي لمر خپلې وړانگې خپرولې . د سین د غاړې څنې کورونه او باغونه اوبو وړي وو . خو د اسلم کور ته سیلاب تاوان نه و رسولی . خلک جوپې جوپې په کلي راگرځېدل او د سین د غاړې د اوسیدونکو پوښتنه یې کوله . غرمه د کلي څو تنه زلمیان له کروندو څخه بېرته راوگرځېد ل او کلیوالو ته یې وویل چې سیلاوونو د کلي ډېرې پولې او کروندې خرابې کړي دي .

د اسلم په کرونده باندې خروارونه ډبرې کوټه شوې وې او پولې پټې یې بالکل نشت کړي وو . د کروندې حال داسې ؤ لکه چې پیړۍ پیړۍ چا هلته یوې نه وي کړې او هېڅکله ډنډ ر هم نه وي پکې شین شوی .

د کلي سپین‌ږیرو سلا سره وکړه چې اسلم سمد ستي د کروندې په حال مه خبروئ . ځکه چې مور یې سخته رنځوره ده او دا پېښه به یې نور هم غمجن کړي .

ماسپښین تېر ؤ چې اسلم د کلي ډم راوغوښت او هغه ته یې وویل چې کلیوال د ده د مور په جنازه باندې راخبر کړي .

گوره چه تېرې شپې به د اسلم له مور نه څه اوریدلي وو ، گوره چه اسلم به په وروستۍ شپه کې مور ته څه ویلی وو ، خو دا حقیقت ؤ چې یوې ارماني مور د خپل زوی د واده ارمان له ځان سره گور ته یووړ . د شپې راز له شپې سره تللی ؤ او هیڅوک نه پوهیدل چې د بزگر زوی به دا شپه د تلونکې مور په پالنگ څنگه تېره کړې وي او څومره به یې سره ژړلي وي .

د ژمي لومړۍ شپې وي چې په کلیو کې د غویانو مرض گډ شو .

او د اسلم ټولې غواوې او غوايې يې مړه کړل . اسلم د خپل ستومانه ژوند وروستی ملګری د بزکشۍ سورآس خرڅ کړ او د هغه د خرڅلاو ټولی روپۍ يې په مور پسې خيرات کړې، دی له دې نه وروسته بيا چا خوشحاله و نه ليد . کرۍ ورځ به د جومات په ګوټ کې غلې ناست ؤ . او په فکر کې به ډوب تللی ؤ . همځولو به که هر څومره غږاوه په « هو » او « نه » يې ځواب ورکاوه او زياتې خبرې به يې نه کولې . ښکار ته به نه ته او د چا مېلمستيا به يې نه منله . د زمانې حوادثو په څو مياشتو کې له کاريګر او خوشحاله اسلم څخه يو مات او ګوښه ګير انسان جوړ کړ .

د ګلد ا ر لور هم بيا چا خندنۍ ا و خوشا له نه ليد له . تل به يې ژړل او د کور نه به د باندې په کار پسې نه راوته . د نجونو

دمازيګرۍ ټوکې ټکالې بس شوې وې او نجونو د ( اميل ) لوبه نه تکرا روله . ا سلم له ځانګړي او تور ژوند نه په تنګ شو . د مور مړينې ، د فيروزې خپګان ، د کروندې او مالونو بربادۍ او تر ټولو دمخه د خسر بې رحمۍ سخت ځوراوه . ده فکر کاوه ، که ګلدا ر ربښتيا خپله لور له ما وګرزوي او د برو درو خانانو ته يې ورکړي ، څوک به زما ملاوتړي او څوک به زما ننګ پرځای کړي .... دا سمه ده چې يو سړی نه سړی دی . دا د کلي ملک ګوره ، دا شيطان ! ده ته خو هيڅوک نه شي ټينګيدای .... زه بايد روپۍ پيدا کړم او د دولت په زور خپل پت وساتم او يا وينې توی کړم او غرو ته وخېژم ....

زلمی بزګر به شپې ورځې په همدا سې متضاد و فکرونو کې تېرولې تر څو د تصميم ورځ راورسېده . ا سلم له ګلدا ر سره سلا وکړه چې زه به نورو سيمو ته ولاړ شم او د ځمکې د آبادولو لپاره به پيسې

وګتم . سبا ته راپاڅید ، خپل ټول کالي او لوښي یې په یوې خونې کې واچول او وریې پسې وتاړه . کله یې چې د خپلې مور د سندوک زنګ وهلی او سپنیز کلپ ځنځیر ته واچاوه ، د اوښکو سیلاب یې د سترګو څخه راکته شو . او یوه شیبه یې هلته ښه په زوره زوره وژړل . څلور ورځې د ژمي له لومړۍ واورې څخه تېر شوې وې چې اسلم له صیاد څخه وووت او د کلي په نرۍ لاره مخ په هوارو ملکونو وخوځیده . د تګ په وخت کې د ګلدار مشرۍ ښځې لیدلی ؤ ، چې د یوه باغ د دیوال خواته له فیروزې سره ولاړ ؤ او هغې ور ته ژړل . اسلم د کور او کوټې کلیانې هغې ته ورکړې او پخپله مخ په ښکته په تاو را تاو لار وکې ننوت او له سترګوالو نیا شو .

لس کاله تېر شول او د اسلم لیک او نخشه صیاد ته رانغلل . گلد ار د اسلم له تګ څخه پنځه کاله وروسته مړ شوی ؤ .ملک شاسوار د اندراب په محکمه کې د اسلم د مرګ شاهدان تېر کړل او فیروزه یې د برې درې د خانانو په خنجر نومي شپیته کلن بوډا باندې واده کړه . هغه د ایجاب او قبول په وخت د خنجر له منلو څخه انکار شوه . او د اجباري نکاح تړونکو وهل ټکول او حیواني سلوک یې وزغامه . مــلا گل رسول فیروزې ته د قناعت ورکولو لپاره د تقدیر او قلم خبري وکړې او سوګند یې وکړ چې ته به د خنجر په کور کې ډېره خوشحاله شې . هغې ته یې د خنجر صفات او کمالات بیان کړل ، خو فیروزې پرله پسې ژړل او نارې یې وهلې :

ــ ملا صاحب د خدای لپاره په ما رحم وکړئ ، زه یو مېړه لړم ، بل مېړه ما ته روا نه دی . اسلم ژوندی دی . هغه په لمنځونو کې ، په بزرګو شپو کې ، د آسمان په وریځو کې او کوم وخت چې د سنځلو گلان غوړېږي ما ته ځان راښکاروي ، زه یې وینم . باور لرم چې هغه به یوه ورځ راشي . فیروزې د واده له شپې نه د کربلا شپه جوړه کړه . هر څه یې په ځان ومنل خو د واده کالي یې وا نه غوستل . رنجلومه ، آئینه او د سینګار نور اسباب یې لرې وغورځول او لوړه یې وکړه چې هیڅکله به ګاڼه په ځان پورې نه کړي او له خنجر سره به سر په سروېږدي و نه لګوي . د فیروزې تر واده وروسته شا سوا ر ملک د درې له خانانو او ملا گلک سره په مشوره کې د اسلم د کور کالي او د خونو تیران او دروازې یووړې او د هغه مخروبه ځمکه باندې یې د چنارانو ځنګل کېناوه او د اسلم د پلار له نامه نه یې یوه عرفي جعلي قبا

له جوړه کړه. د ده د ځمکې مالیه یې په ځان پسې وتړله او د هغه انګرېزي د خوشامند په توګه ملا ګلک ته وروپرېښود .

د فیروزي له ودېدو سره د صیاد ښه غمجنه او سړه شوه خلکو پر دې پېښه باندې اعتراض ونه کړ . لیکن یوه له غمه ډکه چوپیا په خولو او زړونو خوره شوه . د کلي د نجونو ټوکو ټکالو خپل جوش او خروش بایلود او بیا پیغلو د عشقونو او نیکمرغیو په باره کې خپلې خاطرې او هیلې یوې بلې ته نه ویلې .

د یوولسم ژمي ړومبۍ شپې وې چې مازیگر یو پردېس د کلي جومات ته راورسېد . آسمان درنو وریځو پوښلی ؤ او ډېره واوره اورېدلې وه . د مسافر سور خورجین ، توره چکمنه او نسواري لنگوټه تر واورو لاندې سپین شوي وو . جوماتوالو مسافر ته سترمشي ورکړل خو ویې نه پیژانده ، مسافر خپله خورجینه د جومات بر سر ته تیره کړه ، لوند چکمن یې ویوست او د اور چرگۍ ته یې نږدې راځوړند کړ . موزې یې د اوداسه لپاره له پښو وایستې او ځان یې دمابنام لمانځه ته برابر کړ. ځایي مقتدیان نا آشنا مسافر ته ځیر شوي وو . غوښتل یې له ده څخه د نوم ، د استوگنې د ځای او دلته د راتگ د مقصد پوښتنه وکړي ، خو د پوښتنې مناسب وخت ته سترگې په لار وو . په دې کې دوست محمد اکا ناڅاپي په لوړ آواز نارې کړې : اوه... اسلمه ! دا ته یې ! او غریبه ! اسلم د کلي خلکو وپژانده ټول ولاړ شول او له سره یې روغبړ ورسره پیل کړ . ملک شاسوار د اسلم له پیژند لو سره سم د عادت په خلاف وربښمینه چپنه چې د لمانځه لپاره یې غوړولې وه او پې باندې ناست ؤ په تلېوار راټوله کړه او د کلیوالو تر شا چې د اسلم روغبړ ته را ولاړ شوي وو ، د جومات د دروازې پلو پښې سپکې کړې ، د جومات په پای کې یې دروازې ته نیږدې خپلو زمنو ته مخ ورواړاوه او په ورځو او سترگو کې یې هغوی ته په ځان پسې د ورو تلو اشاره ورکړه . د جومات امام چې د ملک د ناڅاپي تک په علت نه پوهېده له محراب څخه پسې ورجگ شو خو ملک د لاس په خوځولو هغه بېرته خپل ځاي ته په محراب کې واستاوه .

هغه شپه د صیاد جوماتوال د اسلم د ناڅاپي او باور نه کېدونکي راتگ په وجه د حیرانتیا او هیجان په سبب خپل لاسونه او

پښې سره ورک کړی وو . د همیشنی دود په خلاف چې ما ښام تر لمانځه وروسته به کورونو ته د شپې نا ري لپاره تلل ، هما غلته د ماخستن تر لمانځه پورې په جومات کې له‌اسلم سره پاتی شول . ټول پوه شوو چې د اسلم د مرګ خبره درواغ وه . د هر یوه په ذهن کې دې پوښتنی سر راپوته کړی ؤ : ګوره اوس به څه کېږي؟ یوازې او بېوزله اسلم به د ښځی ، کور او ځمکی پوښتنه کوي او که به یې نه کوي؟ ملک شاسوار او د برو درو خانان به له ده سره څه سلوک وکړي ؟ هغوی له اسلم سره ژوره همدردي احساسوله او د هرې خواخوږۍ مینه یې پې راماته شوی وه ، خو داسې لورپینه چې بې ژبې او ګونګه وه ، مټ او منګولې یې نلرلې ، برخې او تقدیرونه یې نه شوای بدلولای او د اسلم د ملا تړ وس یې نه درلود . د ماخستن تر لمانځه وروسته دوست محمد اکا د جومات خلکو ته مخ را واړاوه چې اسلم به نن شپه زه له ځان سره بوزم . دوست محمداکا چې د کلي تر ټولو سپین‌ږیرو مشر او په خپلې سادګۍ کې مشهور ؤ ، له کلیوالو سره په شخړه او سرزورۍ کې اسلم له ځان سره رهي کړ .سپین‌ږیري په خپل کور کې اسلم ته د ده پیغلې ، د ده دکور ، دکلي ، د ملک او د برو درو د خانانو ټولې قصې وکړې . د دوست محمد اکا ښځې وویل چې فیروزه له دریو کلو را په دیخوا لېونۍ شوې ده . پرون د برې درې یوه شځه راغلې وه ویل یې غریبګوټې سخته رنځوره ده . هیڅ به پوه نه شې چې دا هغه پخوانۍ فیروزه ده ،غاښونه یې لویدلي دي او ښایسته ځواني یې خاورې شوې ده .

اسلم تر سبایې پورې د خپلو کوربنو قصو او مرکو ته غوږ نیولی ؤ. مګر اوښکې یې نه تویيدې ، شونډې یې نه رپیدې او ښه یې نه وه الوتې . داسې ښکاریده لکه په هر څه چې خبر وي . او د ویر لومړنۍ زلزلې

يې لا پخوا تيرې کړې وي .

د دوست محمد اکا شل کلن ښکا ری زوی قاسم خان چې د اسلم د ښکار قصې او خاطرې يې د سيمې له ښکاريانو څخه اوريدلې وي او تل به يې د ده په ورکيدو او مژګ افسوس کاوه دغه شپه يې ټوله د اسلم تر څنګ تيره کړه . ده څو ځله د مرکې په وقفو کې له اسلم نه پوښتنه وکړه چې بيا به د ښکار شوق وکړې که يه ؟ اسلم به په موسکا ځواب ورکړ چې هو ، زما د ښکا ر مناسب وخت خو اوس رارسيدلی دی .له دې خبرې سره سم به د اسلم په سترګو او تندي کې دغصې او غضب کرښې خورې ورې شوې .

اوسنی ا سلم پخوانی ا سلم نه ؤ . د اوږده سفر ستونزو او د ترخه ژوند مصيبت بله روحيه ورکړې وه . جرأت ، بې پروايي او د کسا ت احساس پکې پياوړي شوي وو .له خلکو سره به يې د جومات په مرکه کې په بربنډه د انتقام اخيستلو او خپل پور خبرې کولې . ده به ويل زما د ګوګل اور بې له وينو تويولو څخه پرته په بل شي نه مري . ما ته نور داسې څه راپاتې نه دي چې پروا يې وکړم .

کرونده ، کور ، نوم او هر څه مې له لاسه تللي دي . ما ته اوس تر دې بې عزته ژونده مرګ ښه دی . که زه خپل وار وانخلم ليونی به شم . ليونې خو به يم بد نامه ا و د خلکو خندنی به هم شم . زه بايد ملکانو او خانانو ته ، دا ور وښيم چې موږ که غريبان يو ، يو به ، مګر بې ناموسه نه يو . موږ چې څوک بې ګناه‌او بې موجبه زخميا ن کړي بيا نو د پړانګ سترګې او د باز زړه لرو . تر څو د هغه وينی و نه بهوو د زړه اور مو نه سړېږي . زه به له خپلو دښمنانو سره هيڅکله روغه ونه کړم . زه له هغو خلکو نه سخت خپه کېږم چې ما ته د انصاف خلاف د صبر نصحيت کوي . دوی ولې هغه وخت خيرخواهي

نه کوله چې زما په ناموس تیری کیده او زما غریبې ځالې ته د زوروړو لاسونه ور غځېدل . هلته دا منځګړتوب چېرته ؤ . مګر هغه وخت دوی ایمان نه درلود او پخپل پردېس او غریب عزیز باندې یې زړه نه سوځېده ؟ دا ظالم ملکان او دا کبرجن خانان د انسان په ژبه نه پوهېږي باید د تورې په ژبه او د ټوپک په خوله پوه کړای شي .

اسلم په لنډه موده کې د کلي ځوان ښکاریان په ځان را وڅرخول او په ژمني ښکار کې ورسره ملګری شو . له دوې سره به ګرځېده ، له دوې سره به اوسېده او هم له دوې سره به یې خپل غم او خپګان شریکاوه او سپکاوه .

د اسلم ښه او پاکه ملګرتیا ، خوږه ژبه ، خیالیګره ځواني ، د ښکار او سپرلو مهارت او د خواخوږۍ روحیه د کلي د زلمیانو لپاره د جاذبې مرکز شو . په لنډه موده کې اسلم د صیاد د اوسیدونکو کلک ملاتړ او پراخه خواخوږي تر لاس کړه . اسلم به د کلي خلکو ته د میلمستیاوو ، مرکو او ښکار په مهال په ډیره درنه او باوری توګه بیا بیا ویل : پر ما باندې د ملکانو او خانانو تیری په حقیقت کې ستاسې پر یو بې مته او بې وسه وروړ باندې تیری دی . که چیرې زه له خپل دښمن څخه خپل پور وانخلم د صیاد د هر بې وسه او بې مته سړي ننګ او ناموس ته په سپکه کتل به یو روا کار وبلل شي . خو زه د دغې بې ننګۍ خښته نه ږدم . زه بې ناموسۍ ته تن نه ورکوم او ظلم ته نه تسلیمېږم . زه د خپل پت په خوندي کولو کې له هیچا څخه مرسته نه غواړم ، دا ځکه چې بې عزته شوی خو زه یم ، نه نور ، پر ما ګوزار شوی ، نه پر نورو او همدا زه باید د خپلې مېړانې او عزت دفاع وکړم ، نه نور . همدې ملک زما تر داړلو درې کاله د مخه د شریف ځمکه پس شا د دري په خانانو وپلورله او له هغه وروسته یې د کریم د ګاونډې

لور په زبردستۍ د نهرین پر لیوانو واده کړه . د دري خانان خو لا پرېږده چې په هره غلا ، هر قتل ، هره فتنه او هره ورکه کې د دوی منګولې په وینو سرې دي .که چېرې شریف ، کریم او نورو داړل شویو کسانو د خپل ننګ او عزت خیال ساتلی وای او د دوی ژامې یې ور ځپلې وای ولې به د هغوی د ظلم اور زما لمنې ته رارسېده .

... هغه چې پر ما باندې شوي دي که له یوه لوري د ظالمانو د تیري نتیجه ده له بل لوري د مظلومانو د تسلیمېدو او زغم نتیجه هم ده . زه په خپل کلي کې نه پرېږدم چې د بې ننګۍ دغه لاره تېره شي او دغه نرخ ځای ونیسي . ما نه یوازې د خپل پور د اخیستلو لپاره بلکه ستاسې عزیزانو د سیمې او کلي د عزت او سپېڅلتیا د ساتلو لپاره ملا تړلې ده او دا نو بیا د بخت کار دی چې په دې نیت کې لویېږم او که لوېږم .

سپین ږیرو به د زړه سوي له مخې اسلم ته مشوره ورکوله چې له ځان سره پام کوه . بې ځایه مه ګرځه او ځانګړی مه ښوره ، هسې نه چې خانان ضرر در ورسوي . اسلم به د دې خبرو په اوریدو سخت وپارېده او په شوربه یې وویل : تیری هم پر ما شوی دی او ځان هم زه وساتم ! ځان به هغه څوک ساتي چې ناروایې کړېده او سیال یې شرمولی دی .

زلمیانو به د اسلم خبره پیاوړې کړه او سپین‌ږیروته به یې خبره بیرته ور وګرځوله ، قاسم خان به خپل پلار ته مخامخ په ګونډو شو او ویل به یې : پلاره دا ته څه وایې ؟ دې ظالمو خانانو ته وګوره چې په خپلو پراخو ځمکو ماړه نه شول او د اسلم شاړه ځمکه یې هم په خپلو ځمکو ورګډه کړه . ملک ته ګوره ! دې ظالم لنډکي شیطان ته، د اسلم کوټې یې ونړولې حتی د هغه تیران او لرګي یې هم خرڅ کړل ، د

اسلم بې کسۍ ، ناچارۍ او بدمرغۍ ته يې و نه کتل . پلاره ته ځان پوه کړه ، دغه خيرنې سترګې بايد ړندې شي ، دغه د کبر او تيري ککرۍ بايد ماتې شي .

دوست محمد اکا به دخپل زوی د دغو ګرمو خبرو له اورېدو سره سم ، خپل ګريوان په کينې لاس ونيو ، خپلې سترګې به يې پورته خوا ته برګې کړې او په شونډو کې به يې وويل : خدايه تې په خپله وساتې ، هلک خو چور لېونی دی !

د کلي ملک د اسلم له راتګه وروسته د جماعت لمونځ خوشې کړ او په کور ننووت ، خپل هلکان او د کهول سړي يې هم له بې ځايه ګرځېدو او ناستو ولاړو څخه منع کړل . د رمې خڅل يې د کور باغ ته راووست او د کور د باغچې په پرچال يې د اغزو ګېډۍ کېښودې .

د برې درې خانان هم وترهېدل له جوپو او سفرونو څخه را وګرزېدل او له لرې مړيو او جنازو څخه يې پښه ونيوله .

د صياد بزګرانو څو څو ځله ليدلي وو چې د برو درو خانان به لکه غله د شپې له مخی په پټه د صياد د ملک کور ته راتلل او هلته به سره جرګه کېدل . مطلب روښانه ؤ ، هر څوک پوهېدل چې ملک شا سوار او د درې خانان د اسلم له لوري خطر محسوسوي او د دوی ناسته ولاړه هغه ته د يو لاس کېدو په خاطر کېږي . اسلم به دغه سړې تودې په ځير څارلې خو ځان به يې نا ګاره اچاوه .

د صیاد ژمی د خونړیو پیښنو د وېرې تر سیوري لاندې تېر شو . حوادث را نغلل ، مګر ملک د کلي له جومات او مړي ژوندي څخه ګوښه پاتي شو او اسلم لکه زخمي پړانګ د کسات او پور په لټه کې ؤ.

د تېرې شپې باران د بوټو او ونو پاڼې وينځلې وې . آسمان شين شوی ؤ ، خو د غرونو په کوزو او شنو لمنو باندې د پاته شويو سپينو وريځو خيمې لا ځای ځای ولاړې وې . په واورو پټې لوړې څوکې د راختونکې لمر تر لومړنيو پلوشو لاندې لکه د روايتی جنت بلوري ستنې ، د لاجبرو چتر ته سرونه اوچت کړي وو . تانده هوا چلېدله او هغه کاږه واږه لوګي يې د کليو او کورونو له آسمان څخه رټل کوم چې د درې د بزګرانو د کورونو او جونګړو د سحرنيو بل شويو تنرونو څخه هوا ته پورته شوي وو . د سين شور پخپله پسرلنۍ مستي کې ټوله دره ډکه کړی وه او ځمکې د غوړېدلو او زرغونېدلو فصل ته د مينې غېږ پرانيستې وه . بزګران له يويو او يومانو سره له کليو او باڼډو څخه په کږو وږو لارو چې وحشي ګلونو او بوټو پوښلې او باران خړوبې کړې وې ، کروندو او باغونو ته روان وو، په همداسې شيبو کې د ټوپک څو پرله پسې ډزو د صياد د کلي کراره فضا ولړزوله او د پيښېدونکو حوادثو انتظار د خلکو په متردد ذهن کې واقعيت پيدا کړ .د اسلم د يارانې ملګري د صياد ښکاري زلميان چې تل د پېښو څارو وو، له کورونو څخه راوځغلېدل ، د سين پر غاړه د تودې چينې پر لوري د ډزو ځای ته رامات شول . اسلم لکه غوسه پړانګ غورېده . د تاندو شنو ونو اړخ ته د ډبرينې لارې په اوږدو کې يې اوچت او پراخ

گامونه اخیستل ، کوځو یې ښۍ اوږې ته راغونډ شوی ؤ او کینه پیڅه یې په ځمکه پسې راخکېدله . لنگوټی یې ول ول په سینه را پروت ؤ . توري بربښېدونکې سترگې یې تر تورو څڼو لاندې چې په ځیږو و روځو راپرتې وې ، له غوسې غټې غټې راوتلې وې او د هغه چا په لټه پسې ؤ چې پر ده باندې یې ډزې کړې وې .

شل کلن ارسلا د کلي د ترکانۍ زوی لومړنی سړي و چې خلاصی تنۍ بربنډې پښې او په سوې سا اسلم ته راورسېده او سمدلاسه یې پې غږ کړ .

ــ ولې لکه لیونی ښکته پورته منډې وهې ؟

ــ په ما باندې ډزې وشوې ! پسې غواړم یې .

ــ څوک وو ، څه شوو ؟

ــ ومې پیژند ل خو ومې نه لیدل . د همدې ونو له مینځه یې ډزې را باندې وکړې .

اسلم د دې لنډو پوښتنو څخه وروسته هماغسې خلاص گریوان او یبلې پښې د ولو ځنگله ته د ټوپکمارانو په لټه پسې ننووت.

قاسم خان او جبارد اسلم د ښکار دوه نو ر ملگري هم راورسېدل ، جبار په وارخطایی له اسلم څخه وپوښتل : دا ډزې په تا وشوې ؟

ــ هو .

ــ چا ...؟

ــزما دښمنان معلوم دي هماغه پخواني ...؟

ــ لگیدلې به خو نه یې ؟

ــ لگیدلې نه یم ، خو درې گولۍ مې له کوڅو نه تېرې شوې دي .

د نا موس پور مې ورباندې ؤ اوس مې د سر پور هم پې واوښت !

ــ پنې دې چېرې پاتې شوې دي ؟

ــ منډه مې پسې واخیسته ، پښې مې په ځغاستو کې له پښو وتلې دي.

ــ څنګه په تش لاس په وسله وال د ښمن پسې ځغلې ، مګر لیونی یې .

ــ په پټېدو او تېښته نه ترې خلاصېږم .

ــ په لېونتوب هم نشې خلاصېدای .

قاسم خان وویل : د خلاصون لاره معلومه ده ، باید دا په وریو روږدي لېوان له سیمې څخه ورک شي .

اسلم د غوسې په مسکا غاښونه سپین کړل ، قاسم خان یې په شا وټپاوه او ورته وې‌ویل : زه به دې خوښ شم ، زما دښمني به دې خوښه شي . ما ته مې زړه وایي زه نه مرم ، خدای د لېوانو ښکار ته پیدا کړی یم .

ــ لنګوټی دې له غاړې څخه راخلاص کړه . وې ترړه چې د کلي خلك و نه وایي ګني وارخطا او بې زړه شوی یې .

کرار کرار د کلي همځولي زلمیان د تودې چینې شاو خوا

د پیښې ځای ته راټول شول ، اسلم یې په مینځ کې راونیو او د خلکو په شور بګت کې یې د تودې چینې له سیمې څخه د کلي د لوی جومات پیتاوې ته راویوست. په لنډو شیبو کې کلیوال لکه مېږتانه د جومات پتیاوي ته را توی شول . وګړو په هیجان او بې صبرۍ د پیښې په باب پوښتنې کولې .

اسلم په لوړ آواز او بیا بیا د پیښې بهیر کلیوالو ته بیاناوه : قاسم خان سبا ناری ته میلمه کړم د ده له کوره راووتم نیت مې وو چې خپل انګړ ته لار شم او هلته له جبار او ارسلا سره د یوې کوټې او د دالان د جوړولو په باب سلا وکړم ، تودې چینې ته لا نه وم رارسېدلې چې

د لارې له بنې خوا د ولو له ځنګله څخه غبرګې ډزې را باندې پیل شوې. په لومړي سر کې یوه نشوم چې برید پر ما شوی دی خو چې ځنګه پوه شوم ځان مې د لارې داړخ د ډبرو دیوال ته واچاوه. بیا مې سد سر ته راووست، د ډبرو له شا راپورته شوم. یوه خوا بله خوا مې له سترګو وایسته چې ګوندې د ډزو خاوندان ووینم او ویې پیژنم. څوک مې و نه لیدل او د ټوپکمارو لوری و نه لګېده. دوی تښتېدلي وو. خامخا به یې دا فکر کړی وي چې زه لګېدلی یم. نه نه زه نه لګېږم. زه تر هغو ژوندی یم تر څو دغه د درو او هوارو څیروونکي ځناور ښکار کړم. زه اوس تاسو عزیزانو ته بربنډ وایم چې زه کسات اخلم، کسات. دغه دلوړو برجونو او جګو کلاوو خاوندان چې تل یې زمونږ پر بدمرغیو باندې خندلي دي، باید اوس پخپلو بربادیو او تباهیو باندې وژاړي، باید د دوی له باده ډک سرونه تش شي. باید د انسان عزت خوندي شي او د سیال سیالي در نه وتلل شي. زه د همدې آرمان لپاره صیاد ته بیرته راغلم. دې آرمان ته به ځان رسوم او همدلته، په همدې صیاد کې به اوسم او هم‌دلته به مرم.

اسلم د کلي د زلمیانو سره ژبه وکړه چې سږکال به خپل کور بیا د صیاد په کلي کې آباد کړي او هغه به د دوی د ساتیرئ، مرکو او یارانې رغولی وي.

پر اسلم باندې له ډزو څخه یوه هفته وروسته د کلي ملک

د اندراب ولسوال ته کېناست چې اسلم نومی فراري بیا صیاد ته راغلی دی، د سیمې ټول غله او بدماشان یې پر ځان راټول کړي دي .څوک له ډاره کلمه نشي ورته ویلای، د ورځې له خوا جواري کوي او د شپې مهال کورونه وهي او خلک لوټوي.

دی پخوانی بدماش دی، په کلي کې یې ډېر کسان وهلي او سپک

کړي وو ، لس کاله پخوا يې د گلدار په لور باندې نا روا دعوی وکړه ورپسې يې پچه وخته ، عسکري ته يې تن ورنکړ ، مخامخ وتښتېده او لاړ . لس کاله په شبرغان او ميمنه کې له داړه مارانو او غلو سره پاتې شو . دا لا څه کوې د ځمکې ځو کلنه ماليه يې هم نه ده ورکړې او اوس راغلی د سيمې لوټمارا ن يې په ځان را ټول کړي دي . پټمن کسان او د عزت خاوندا ن سپکوي او له ناپوهو خلکو څخه باج اخلي .

صاحبه څه درته ووايم اسلم نه دی وبا ده ، وبا . پخوا به ولس له ما څخه سترگه کوله او خبره به يې مځکې ته نه اچوله . اوس زما په خوله باندې دوست محمد اکا او د کلي ترکاڼ پياز هم نه پوستوي . جومات ته نشم ورتلای ، مړی او ژوندی را څخه پاتې دی . بزگران سرکاري بيگا ر ته نشم راوستلای . که دا اسلم و نه ترټل شي او د کلي د مشرانو عزت خوندي نشي نه زه ملکي کولای شم ، نه ملا ملايې کولای شي . او نه صاحبه د سرکاري مامورينو خدمت ته رسيدلای شو .

پرون ما دغه مرکه له څارنوا ل صاحب سره هم وکړه . هغه مصلحت راکړ چې ته له ولسوا ل صاحب سره چې د منطقې آمر دی دغه خبره يا ده کړه ، خدای شته څارنوال صاحب هم دې خبرې ته چرت يووړ او وزه يې ډېره خړه شوه .

ولسوال د ملك خبرې تر پايه په سړه سينه واورېدې بيا يې ملك ته وويل : دا اسلم له څه مودې را هيسې دلته راغلی دی ؟

ــ صاحب خدای مې دې غاړه نه نيسي پنځه مياشتې به کېږي .

ــ نو تا ولې دومره ناوخته د هغه په باب اطلا ع راکړه ؟

ملك فو ري ځواب نه درلود ، ژبه يې يو څه ونښته بيا يې بې ارادې له خولې راووتل: صاحبه د کلي او د کور خبره وه له

مشرانو سره مو سلا ته واچوله ... ملک لا خبره نه وه خلاصه کړې چې ولسوال یو څه په لوړه او جدي لهجه د ده خبره پریکړه او وې ویل نه ملکه داسې نه وه ، زه د دې سیمې د کلیو او کورونو له احوال څخه خبرېږم . له ما څخه هیڅ شی پټ نه پاتي کېږي . که حکومت له پېښو او خلکو څخه بې خبره پاتي شي سیمه به څرنگه اداره شي . او عدالت به څرنگه وچلېږي .

ولسوال خپل وچ اوربوز او تنگې سترگې چې تر تورو عینکو لاندې لا تنگې شوې وې ملک ته ورواړول او په یوه مکاره موسکا یې ورته وویل : تا لومړی سر نه غوښتل چې د لاس غوټه په غاښونو خلاصه کړې . ځکه دې حکومت ته د مراجعې پرځای د ټوپک ماشې ته گوته وروړه . خو گولۍ هر وخت په نخشه نه لگېږي .

ولسوال د غوسې لاره ونیوه آواز یې لوړ کړ او خبرې یې حاکمانه شوې .

ــ پخوا به دې بیوزلې کسان دې تش لوټول خو اوس یې هم لوټوې او هم یې وژنې !

د ملک سترگې له ویرې گردې شوې . گوتې یې وریږدېدې او لکه راچاپېر شوی گیدړ پخپل پوستکي کې سره ننووت :

ــ نه صاحبه هغه کسان چې په اسلم یې د ټوپک ټکونه وکړل له فج نه په ده پسې راغلي وو .

ــ نو ته پې خبر يې او پېژنې يې ؟

ــ هو صاحبه په پیرندو یې پېژنم !

ــ دا دې رښتیا وویل ځکه چې تا هغه پخپله په اسلم پسې راوستي وو .

ــ نه صاحبه په قرآن که زه قاتل یم .

ــ که ته قاتل نه یې ولې دې پر اسلم باندې د ټکونو رپوټ حکومت ته ورنکړ . ملکه تا د حکومت په ږیره باندې ډېرې لوبې کړې دي مګر دا لوبې پای ته رسېدلې دي . ته باید پخپلو فرضو پوه شې . او د حکومت قدرت په نظر کې ولرې .

ملک له ځایه راولاړ شو په الوتي رنګ او وارخطایي د ولسوال پر لاسونو ورپرېووت او په معمولو غوړمالیو یې خو له خلاصه کړه ؛ صاحبه ته خو مور او پلار یې ، که ته موږ او نه بخښې ، خدای مو هم نه بخشي . ستا ټولې خبرې زموږ په ګټه دي . خو موږ خره او ځناور یو او نه پې پوهېږو . له هغې ورځې چې ته په اندراب کې ولسوال شوی یې په خدای که د چا په پښه کې یو اغزی هم مات شوی وي . والله که نوشیروان عادل داسې عدل چلولی وي .

ولسوال خپل لاسونه په غوسې له ملک څخه ورټول کړل‌واردلي ته‌یې ورنارې کړې .

بازمیره ، هله !

دروازه خلاصه شوه او پریړ خیټور اردلي چې له عسکري برتیې سره یې لنګوټه تړلې وه او د پکتیاوالو په دود غاړه کې او کمربندیې اچولي وو په‌دروازه راننووت او پښه‌یې داسې په زوره درغولي په لیمځي ووهله چې دوړې ترې پورته شوې .

ولسوال وویل :

دغه ملک وباسه او د سین تر پله هغه خوایې وشړه !

اردلي د ملک د چکمن ګریوان کې لاسونه واچول جګ یې ودراوه ، د دروازې په لوریې راښکود . ملک په عذر او ژړا لاس پورې کړ : ولسوال صاحب په ما رحم وکړه . مړ مې کړه مګر خپه کېږه مه ، بندي‌مې کړه خو یو وار راته وخانده . صاحب د خدای‌له پاره خپل

سوری له ما مه لرې کوه ، زموږ قصور ته مه ګوره ، خپل رحم او کرم ته ،ګوره . زه خو په دې سیمه که د خدای او ستا هیلې ته پروت یم . ما مه بې عزته کوه .

د مازیگر له مانځه وروسته لکه هره ورځ د صیاد د لوی جومات
په انګړ کې د کلي ځوانان سره راټول شوي وو . پخوا به همدې
مهال د ما ښام تر فرضو پورې د جومات زیاتره لمونځ ګذاران
د لته راټولېدل او مرکه به یې سره کوله . په خبروکې به هر چا هر څه
ویل. د محلي پېښو په باره کې ، د نرخونو په باره کې، د پولې پټې او
څارویو په باره کې ، د مېلو ، ودونو او عشقونو په باره کې به خبرې
کیدې . اوس د جومات مرکو خپل خوند او رنګ بدل کړی دی .
زلمي هلکان د ښکار او بزکشۍ په باره کې ، د مېړانې او ټینګې
ملګرتیا په باره کې خبرې کوي . په زلمیانو کې له زور زیاتۍ سره
د مقا بلې فکر پیاوړی شوی دی . په مرکه کې د تېر وخت په خلاف
د ملکانو ، خانانو او سودخورو پر ضد خبرې کېږي ، د کلي ملک او
د برو درو خانان په بدي یادیږي . هغه کلیوال چې تودې خبرې نه
خوښوی او هر زور زیاتی پر ځان باندې زغمي له دې مجلس نه ګوښې
شویدي . یو زلمی ښوونکی چې لس ورځې د مخه د « ده سلا »
ښوونځي ته راغلی او د صیاد د جومات په حجرو کې یې استوګنه
کړې ده ، په همدې مرکه کې کیني ، مګر خبرې نه کوي او تش غوږ
نیسي .

نن ورځ لکه نورې ورځې هلکان د جومات په انګړ کې راټول
شوی دي . اسلم له هلکانو څخه پوښتنه وکړه : قاسم خان نن نه
معلومیږي څنګه نه دی راغلی ؟

نظر بزکش چې د ارزنګان له کلي څخه قاسم خان ته میلمه راغلی
ؤ غاړې یې تازه کړې ، وې ویل :دلته له ما سره د مازیګر په اوداسه
ناست ؤ ، چې کلیوالو یو په وینو سورپور بوډا لاروی راووست ،

غریبگوټی د ملک سپیو په لویه لار کې دا پرلی ؤ . جامې یې ټولې شکېدلې وې او وجود یې لکه د ژرندې ټکټکانی رېږدېده . قاسم خان چې سپین بږیری وکوت تبه یې په لړمانه ننوته او سم د لاسه د ملک په کلاور روان شو . خدازده چې دوست محمد اکا له کومه راپیدا شو سر یې قاسم خان ته لوڅ کړ او د ملک له کلا څخه یې راوا پراوه بیا نو زوی او پلار دواړو په ګډه سره هغه دا پړل شوي بوډا کور ته بوته چې څه دوا دارویې وکړي .

نظر بزکش لا خبره نه وه خلاصه کړې چې قاسم خان د جومات پر انګړ راننووت او سلام یې واچاوه .

اسلم دهغه سلام وعلیک کړاوپوښتنه یې وکړه : چیرته یې شیر بچه ، موږ دې یوازې پرې ینبې یو !

هغه وخندل او د لاس نسوار یې خولې ته واچول : زه به ملګري هیڅ وخت یوازې پرې نه ږدم ، خو اوس یوه عجیبه پیښه رامینځ ته شوې ده . ملک صاحب به پخوا پخپله خلک دا پړل خو اوس چې دی تا په غار ننه ایستی دی خپله وظیفه یې سپیو ته ورپرې ینبې ده . ټولو وخندل او قاسم خان خپله خبره داسې له سره راونیوه : یاره ! اسلمه زه خو دا ښه بولم چې په سمه رښا ورځ یې ورغلي وای او دا ګرد کلي مو د دې ملک له عذابه خلاص کړی وای .

دوست محمد اکا چې د انګړ د دیوال شا ته د لښتي پر غاړه خپله ښۍ پښه د دریم ځل لپاره تر اوبو ایستله د زوی له دې خبرې سره په

درانه آواز له ځایه راجګ شو او رامنډه یې کړه او د لاحول ولا په تکرارولو کې په داسې هیجان انګړ ته راننووت چې پښې یې

د اوداسه پرځای پاتې شوې او یوه پښه یې لا نه وه مینځلې ، قاسم خان ته ورنیږدې شو او سر یې ورته لوڅ کړ : دا زما سرتور سر ته

وگوره قاسم خانه، ښامارانو ته مې په غېږ مه‌وروله ، له زوروړو سره مې مه اخته کوه ، موږ کمزوي خلك يو ، له پياوړو سره گوتې نشو ماتولای، دا ستا کبر زما بېوزلي بوډا په کور کې نه ځايېږي .

ټول ناست کسان دوست محمد اکا ته غوږ او سترگې شول .
قاسم خان چې د پښو په سر ناست ؤ، نسوار يې تو کړل ، راولاړ شو، پلار ته مخامخ ودرېده او د عادت په خلاف يې په درانه خو پاسته آواز وويل : پلاره ! په دې غريبۍ او بې آزارۍ کې د ظالمانو له ظلم او د زوره‌ورو له زوره نشې خلاصېدای . وگوره هر چېرې چې ټيټه ځمکه ده سيلاب په هماغې ورځي ، او په هره ونه کې چې ټيټ ښاخ دې هما غه لوڅېږي . اسلم ته وگوره دی يو غريب او يو وزری سړې ؤ. په هيچا نه لگېده او هيڅ کليوال ته يې تاوان نه‌ؤ ور رسولی ، مگر زور ورو د ده ښه سړيتوب او غريبۍ ته و نه کتل ، د ده دکور تيران او دروازې يې په تناره کې وسول او د ملك شاسواربېيانو ډوډۍ اوپراټې پې پخې کړې . د دغه کلي ملك او نورو ظالمانو د اسلم د مرگ مجلا تېره کړه او د هغه ناموس يې لکه څاروی په پيسو خرڅ کړ .دا لا څه کوې ....

اسلم راولاړ شو او د قاسم خان خبرې يې پرې کړې .

ــ قاسم خانه له پلار سره دومره دعوا ته څه ضرورت دی . دغه خبرې اوس پرېږده بيا به په کور کې سره پې وغږېږو .

قاسم خان تود شو او اسلم ته يې په ځيره‌غاړه وويل: نه اسلمه‌له تا سره دغه گواښ نه جوړېږي . ته هيڅ وخت کمزورې خبره مه کوه . زه بايد خپل ابا ددغو ځوانانو تر مينځ چې ټول لکه دده زمن او ورونه دي قانع کړم. زه د پلار منم مگر د چا ظلم او تيری نشم زغملای. زه کبر جن نه يم او له زوروړو سره هم ټکرې نه وهم مگر که څوك

را شي او له ما نه ناموس واخلي يا مې دقوم او ولس په وړاندې وکنځي ، سپک مې کړي يا د خپل کور کلي او عزيزګلوۍ څخه مې وباسي او يا زما مرګ او ورکې ته ملا وتړي دا بيا زما فرض دی چې د دغسې
ظالمانو مقابلې ته راووزم او سترګې ځنې وباسم .

جبار چې شکېدلي تنې د يو زاړه توت ډډې ته ناست ؤ او
د قاسم خان دخبرو تر اغيزې لاندې راغلی ؤ ، را په ډډه شو او د هغه خبرو ته ورننووت : انديوالانو قاسم خان سم غږېږي . دی کبرجن نه دی ، بلکه د کلي ملک کبرجن دی چې په لويو لارو کې سپي خوشې کوي ، او مساپر پرې داړي . که قاسم خان ورته ونه وايي ، زه ورته ونه وايم او ته ورته ونه وايې چې سپي دې دروتړه او لويه لاره خلکو ته مه نيسه نو څوک به ورته ووايي . دغه ځای دې په نخشه وي که يې سبا کليوال په دغو سپيو ونه خوړل . هغه سپي زموږ په هلکانو پسې راوستي دي ، په دې بوډا مساپر باندې خو يې هسې غابنونه ورسره کړل .

آدينه چې لا پخوايې خبروته شونډې او برېتونه الوتل په شړۍ کې را په ګونډو شو او د جبار په خبرو ورننووت : جباره ! دا ملک ندی تلک دی تلک . تېر کال در په يا دکړه چې د جومات ملا به لا له حجرې څخه نه ؤ راوتلی چې ملک صاحب به د آذان ناره جګه کړه او بيا به يې له جمې وروسته د لمونځ ګذارانو حاضري اخيسته او په هغو کليوالو پسې به يې سيا او قلم راواخيست چې جمې ته به نه ووراسېد لي او په پټې کې به يې لمونځ کړی و . په ناغه کې به يې خپل ځانګړی بيګار پې چلاوه او يا به يې چرګان پې حواله کول . اوس راشه وګوره ، پوره پنځه مياشتې کېږي چې ملک صاحب په خپله محراب ته شا وراړولې ده او له جومات څخه په ډيګلان تېرېږي . ټولو

هلکانو د جبار په دې خبره وخندل او جبار خپلو خبرو ته داسې دوام ورکړ : اوس باید له دوست محمد اکا څخه پوښتنه وکړو . د کلي خلک نن دا حق لري که نه چې ورشي ملک او زمن ، وریرونه او نوکران یې جومات ته را په مخه کړي . او په ټولو باندې چرګان حواله کړي . قاسم خان تېره تېره خپل پلار ته وکتل او مخاطب یې کړ : ځواب ورکړه پلاره ، آدینه خو ناروا خبره نه ده کړې .

ــ څه ځواب ورکړم خونګه ماران او لړمان موله خولې راتوېږي . خدازده په دغه کلي باندې څه غضب رانازل شوی دی چې سم هلکان یې لېوني شوي دي .

قاسم خان وویل : پلاره څوک نه‌دي لیوني شوي ، بلکې وښیار شوي دي ، یوازې ته نه وښیارېږې .

قاسم خان لا دا خبره نه وه بشپړه کړې چې مهردل د صیا د د پخواني ملک زوی چې برصیاد ته د تګ په لاره کې لمانځه ته راګرځېدلی ؤ ، په قاسم خان خوله را خلاصه کړه : په ملکانو او سپین ږیرو خو نه وې بند اوس نو په خپل پلار هم نه‌یې بند ، تا ښکر کړي دي ، ښکر .

قاسم خان لکه پړانګ له ځایه غورځار شو ، ټول هلکان راولاړ شول . ارسلا د نورو له مینځه راووت او مهردل ته یې وویل : ته ولې د پلار او زوی تر مینځ تیرېږې ټکوې ؟

په دې کې جبار لاس لکه توره د مهردل ژامې ته ورتېر کړ : چې دا خبرې نه شي اورېدلای دلته ولې کېنې ، دې کلي ته ولې راځې ؟

اسلم جبار ته په غوسه شو او په ترخو خبرو یې وراټه او بیا یې مخ مهردل ته ورواړاوه وې‌ویل: مهردله زما نه لورېږي چې ته له دغو ګلالیو زلمیانو څخه لار جلا کړې . د مېړاني د حق ادا کولو لپاره دغه بیه

بیخي بس ده چې د دغه کلي زلمیان دې خپل دوست او انډیوال وبولي او پخپله خوښۍ او خپګان کې دې ورشریک کړي . ته ښه زلمی یې او دا ښه ځواني د هر ناولي او بې ایمانه سړي په ملاتړ باندې مه خیرنوه ، په بېوزلو کلیوالو باندې سترګې مه را باسه او مات شوي زړونه مه پسې ماتوه . ګوره نن په دې کلي کې چې ستا عزت او ابرو هم پې پورې تړلې ده ، یو بېوزلی مساپر بوډا د ملک سپیو داړلی دی او بیا وروسته تر دې پېښې دغه مساپر ته عذر هم نه‌دی شوی او مرسته هم نه ده ور رسېدلې . په دې باندې خو زموږ کلی بد نامېږي . ته باید د سپیو د خاوندانو ملا و نه‌تړې ، له تا سره دا ښایي چې د قاسم خان ، جبار او نور و ځوانانو ملاتړ شې او د لوټ شوي قوم او کمزورو خلکو مد د وکړې . له هغې ورځې چې زه کلي ته راغلی یم ستا وربوز ما ته کوږ دی ، له ما نه لرې ګرزې ، زما په سبب له دې زلمیانوڅخه هم لری شوی یې او د ملک شاسوار له زمنو سره دې یارانه نښلولې ده . که چېرې تا ته دا سې ښکاري چې زه په ملک شاسوار باندې ګرم شوی یم نو را شه ما قانع کړه . زه به پړه په ځان ومنم او رسۍ په غاړه به د ملک کاکا عذ ر ته ورشم او ستا د مردۍ او انصاف شمله به پسې جګه کړم خو که ملک شاسوار پر ما باندې ظلم کړی‌وي او پور پټۍ مې هم‌نه کوي او سیال مې هم نه بولي بلکې په مرګ پسې مې ګرزي نو تا ته بیا څه حق دی چې له ما سره ټکرې وهې او د ملک شاسوار شا ته درېږې .

صوفي محی‌الدین چې د صیاد په کلي کې یې دکانداري کوله او په خلکو کې په امانت دارۍ مشهور ؤ په لاسونو تکیه ولګوله راولاړ شو او د اسلم څنګ ته راغی او هغه یې مخاطب کړ : زویه په خوله دې برکت شه ، ملک شاسوار به خامخا ستا اوښکې پاکوي او د سیال په

تله به دې تلي ، ملك هم بد سړی نه دی . هغه ته په غلطه چا ستا د مرګ خبر راوړی و او په دې برسېره له هر چا سره شيطان ملګری دی ، هغه به يې په هله‌و ننوتی وي ، له لاري به يې ايستلی وي . خو خدای ډېر احسان ورسره کړی دی ، ښه مځکه يې ورکړې ده ، د چنارونو ښه مست ځنګل يې رسېدلی دی ، پيغلې لوراني لري ، د بزکشۍ آسونه او څاروي يې شته دي ، ستا عذر کولای شي او بايدويې کړي .

قاسم خان د صوفی محی الدين خبرې پرېکړې او وې ويل : صوفی صاحب ! ملك دا ټول شيان لري مګر انصاف نلري او ايماندار نه دی .

په دې کې ملا د ماښام آذان وکړ ، هلکانو چکمنې او شړۍ وڅنډلې او يو پر بل پسې پر جومات ننوتل .

د ملک شاسوار ماغزه ډېر خراب وو . په ژورو اند ېښنو کې یې
شپه تېره کړې وه . د کلي د خلکو تګ راتګ ورسره کم شوی ؤ .
جومات ته نشو تلای . د کلي له مړي ژوندي څخه یې پښه را لنډه شوې
او د پخوانیو دوستانو پاملرنه ورته کمه شوې وه . اسامیانو یې مخ ځنی
اړولی و ، هغوی یې نورو ملکانو ته حواله کول . اسلم دنیا ور باندې
تنګه کړې وه او دی یې د کلیوالو له احترام او محبت نه لرې کړی و .
ملک فکر کاوه دا ټولې تنګسیاوې زغمل کیدی شي مګر د
ولسوال د خپګان او مخالفت د زغملو توان خو نلرم . که دا ولسوال
یو ځل د اسلم لوري ته ودرېږي او زما لمن په شا راواړوي او جامې را
څخه وباسي ، زه به څه کوم ، چا ته به مخ وراړوم او څوک به
دستر څادر راباندې غوړوي . دا لا څه کوې که ولسوال په دې خبره
ځان وپوهوي چې د صیاد شل جلبیانو ته ما د ورکې او بیکسۍ تقلبي
مجلاوې کړي دي او ما د خواجه حیران د مرګ نا حقه شاهدان تېر
کړي دي او هغه ژوندی ګرزي . پهو هو که په دې مې ونیسي چې د
عثمان قتل ما پټ کړی دی او هغه مې په نا حقه فرار لادرک ښودلی
دی او پخپله په دې ټولو خبرو ځان نا خبره واچوي . ملک شاسوار ته
د خپلو کړو وړو آیینه ور مخکې شوه او د جعلي سندونو ، د غلاوو ،
قتلونو او دسیسو یو اوږد طومار یې له سترګو تېر شو ، مګر ژر په خپل
هیجان او وارخطایۍ باندې مسلط شو . دا ټول طبیعي او داسې
کارونه ورته ښکاره شوو ، چې باید شوي وای . یوازې یو شی ده ته
غیر عادي او نا روا ښکارېده هغه د ولسوال خپګان او له ده څخه مخ
اړول وو ، ده فکر کاوه چې ولسوال باید زما د کارونو په حقانیت پوه
وي . دا ټول خو ما د حکومت د خیر لپاره کړي دي . که قتلونه نه

وای تر پښو لاندې شوي او که د خلکو مځکې پسې شا نه وای قباله شوې‌او که د دغه او هغه کس په حق باندې سترګې نه وای پټې شوې نو دې ولسوال او د حکومت مامورینو ته به چا دغه جوال جوال لوټونه ورکول . دغه سرې غالۍ او وریښمینې بړستنې به دوی له کومه پیدا کولې . لا ډېر وخت نه دی تېر شوی چې همدغه ولسوال ته مې په دې خپل ګناګار لاس دوه لکه روپۍ ورکټلې دي ، د شاه‌نور میرآب غوا او د الله‌داد بزاز قالینه مې د همدې ولسوال میرمن ته وروليږل . کله چې بیا د ولسوال واړه د پلرګنۍ کور ته روان وو ، د لارې خرڅی ، سوغاتونه او پنځوس زره نغدې روپۍ مې همدې ولسوال ته کېښودې . ملک شاسوار د ولسوال په فکر کې ډوب شوی و . کوشش یې کاوه چې د هغه د خپګان موجبه او دلیل پیدا کړي او په علاج پسې یې پښې لوڅې کړي . نا څاپي یې بلې خوا ته پام شو . له ځایه په منډو را جګ شو . د کوټې دروازې ته راووت او میرزا ته یې نارې کړې : هلکه میرزا دلته راشه ....

ـ څه وایې پلاره ؟

ـ یووار ژر دلته راشه !

ـ درغلم ، درغلم .... او په منډو منډو د پلار کوټې ته راغی .

ملک وویل : یو وار مهردل ته ورشه تر ما پورې یې راوله .

ـ مهردل څه کوې ؟

ـ پوهوم یې چې له اسلم سره دې‌اوس ګوتې نه ماتوي .

ـ ولې؟

ـ اسلم له ولسوال سره لاره پیدا کړې ده . هغه کلک پې ولاړ دی .

که مهردل له ده سره ګوتې ماتې کړي د ولسوال څپېړه ما ته رااوړي .

ـ پلاره له دې مهردل بزدل څخه څه نه جوړېږي . دا د بوسو

پهلوان دی . په ده پسې نور هیڅ سر مه ښوروه .

ـ میرزا زویه ولې ترخولې تېرې خبرې کوې . مگر مهردل د ملک یوسف زوی نه دی ، قشخانه نلري ؟ د دسترخوان او د روازې څښتن نه دی . په پنځو کسو کې نه یاد پږي او د کلي د مېلو او تنگ تکور ستنگان نه پې راټولېږي ؟

ـ نه ، نه هغه د بوسو پهلوان دی د قول او وعدې سړی نه دی او ملگري د تنگسیا په وخت یوائې پرېږدي .

ـمیرزا زویه په تا څه شوي دي . د تا ننۍ تله د مهردل په باره کې ډېره سپکه راوزي ، پخواهم دا ته وې چې مهردل به دې له خولې څخه نه اچاوه . که ښه ځواني وه د مهردل وه ، که ښه آسونه وو د مهردل وو او که غیرت او یارانه وه د مهردل وه . اوس چې دغه مهردل ما ځا ن ته رانیږدې کړ، خپل راز مې ورته وواېه او په سرکاري کارونو مې بلد کړ ،ته هغه سپک تلې او د نیمې لارې مل یې بولې .

ـ هغه وخت زه پرې غولېدلی وم . پر پړ څټ او غټو خبرو ته مې کتلي وو ، داسې مې لا نه و تللی ، بیا بنیا دم دې یوه ورځ یو وړ بله ورځ بل وړ وي . خو د نن مهردل هغه پرونی مهردل نه دی ، په بله خوا اوښتې دی .

ـ ته د مهردل بل و ړ کېدو ته څه دلیل لري ؟

ـ بل وړ کېده خو ښکر نه لري ، همدغه تېره شپه اسلم د مهردل په کور مېلمه و ، د دوست محمد زوی ، د ترکانې زوی او د مهردل خپل لوچکان لکه سکندر ، روزی ، گلاب او داسې نور هلته سره راټول شوي وو. تر پرونه پورې لکه د پردیو کلیو سپي یو بل ته غپېدل او یو بل ته یې داړې سپینولې او نن مېلمستیاوې سره خوري .

ـ دا خبره تا له کومه واوریده ؟

ــ ما ته همدا نن سحر د لوی جومات مولوي صاحب د خپل طالب په خوله دا خبره راورسوله . د جومات چړي بیګا د وظیفې ټولولو په وخت دغه کسان د مهردل په قشخانه کې لیدلي وو . دوه ورځې د مخه د تورې چرګې ملا ما ته پخپله د ده سلا په بازار کې وویل چې اسلم له مهردل سره د زړې ژرندې په لښتي ناست و او خبرې یې ورسره کولې .

د ملک شاسوار غوږونه د دې خبرې په اوریدو مړاوي شوو ، وې ویل : د تا خبره سمه ده ، دا د ملک یوسف زوی همداسې دی . ملک یوسف پخپله هم داسې بې غیرته سړی و . له بې غیرته سړي نه به څنګه ښاغلی زوی پاتي شي .

ملک یوه شېبه ډوب لاړ بیا یې یو څه په ذهن کې را پیدا شول میرزا ته یې مخ راواړوه وې ویل : زویه ! چرت مه خرابوه ، که زه درته ژوندی وم په صیاد کې به بیا بل بنده سر راڅخه پورته نه کړي . پرېږده چې هر څوک خپل زور معلوم کړي . دا ولسوال او مامورین د خدای په توکل له ما څخه څوک نه شي بې لارې کولای . بیا یې ګوره چې همدا مامورین د اسلم او دوستک د زوی پښو ته زولنې اچوي که نه ! ته اوس لاړ شه زویه بهرام قولته تهووایه د تورې چرګې ملا زما له خوا پټ پوه کړي چې د ماخستن له مانځه وروسته یو وار د میرشاه قشخانې ته راشي او که یې خوښه وه د جومات ملا صاحب دې هم ورسره راولي .

د تورې چرګې ملا ، ګل رسول نومېده په کوچنیوالي کې د غریبۍ لپاره د خپل پلار سره صیاد ته راغلی و . د پلار تر مرګ وروسته د څارویو په پوولو او د کلي له غوبني څخه په تدریج له ملک یعقوب ، ملک یوسف او ملک شاسوار سره د پای دو په صفت میشته شو . ملکانو ته به یې اسامیان راوستل او د حکومتي جلب کاغذونه به یې له

ولسوالۍ څخه کليو ته وړل . وروسته يې د ملکانو په اړخ کې د احصائيې ، ماليې او څارندويو له مامورينو سره لار پيدا کړه او د مراجعينو څنې معاملې به يې له ملکانو څخه په پټه د رشوت په ذريعه خلاصولې . په هلک‌توب کې يې د جومات ابتدايي زده کړه کړې وه خو ملا يې تعليمات يې نه درلودل . تيز او چالاک سړی و او سپينه پګړۍ يې تړله ، سترګې به يې تورولې او له ملايانو سره به د مړيو د تکفين او اسقاط په کار کې لاندې باندې ګرزېده ، کله کله به په جومات کې جذب واخيست او د جذب په وخت کې به يې څګونه تر خولې تله او ستونې ستاغ به په جومات کې ويړ پروت و . ده به ويل د پيښور د مرغوز د سيدانو مازون يم ، په همدې استناد به يې بدنصيبه ښځو ته د تورې چرګې په وينو د بخت او برخې تاويزونه کول او د تاويزونو په شکرانه کې به يې يو چارک غوړي ، يو من وريجې او هماغه توره چرګه غوښتله . له همدې کبله د تورې چرګې په ملا مشهور شوی ؤ . ورسته يې د شکرانې او رشوتونو پيسې په سود بندې کړې او کرار کرار د څلورو ښځو خاوند او د کلي يو مالدار سړی شو . خو د دې لپاره چې ده په اندراب کې قومي ملاتړ نه لاره ، له ملکانو او د دولت له محلي مامورينو سره به يې نيږدې روابط ساتل او هغوی ته به يې جاسوسي کوله .

د توري چرگي د ملا او د صياد د لوی جومات د امام ملاقات له ملك شاسوار سره يو عادي ملاقات نه و ، په تربږمۍ کې د چنارونو د ځنگله له لارې بيا د خوږ د ډبرو په مينځ کې د ويرې او هيجان تر احساس لاندې د ميرشاه کور ته راغلي وو .

مرکه په خوږو الفاظو او ټوکوټکالو پيل شوه . ملك شاسوار ميرشاه ته وويل ته موږ سره پرېږده ، يو څه ترخه چايونه راولېږه ، هغه ووت او د توري چرگي ملا په توره نرۍ ږيره غبرگ لاسونه را تېر کړل بيا يې تسبې له جيبه راوايستې ويې کړپولې او په غلامانه لهجه يې ملك ته وويل : ملکه زه او مولوی صاحب خو دې نن بېحده وارخطا کړو . زه لگيا وم قصيده مې ويله او د جاندل له ښځې څخه مې پيريان ايستل چې په دروازه کې د بهرام قولته آواز را په غوږ شو . ډېر وارخطا ؤ . ستمېده او پر له پسې يې کور والاو ته اصرار کاوه چې ملا گل رسول را پيدا کړئ ، هغه ته مې د ملك شاسوار له لورې يوه ضروري خبره راوړې ده . ما د ده آواز د ننه په کور کې اوريده فکر مې وکړ چې اوس که قصيده نيمايي پرېږدم خو د دې خطر دی هغه توربدلي پېريان چې لا سم ندي تابع شوي زما په کاله او بال بچ باندې به مخ راوکړي او که قصيده خلاصوم وخت را نه تېرېږي . خدای شاهد دې چې هغه د پېريانو خطره مې په خپل بال بچ ومنله او راولاړ شوم . بهرام په سوې سا سلام راواچاوه او په وارخطايي يې ستا پيغام راکړ . ملکه کله چې مې له بهرام قولته نه د تا له لوري دا د شپې د پټ راتگ پيغام واوريده ، زړه مې تر تلو تېر شو .ما وې خدايه خير کړې بيا څه پېښ شويدي . سم د لاسه مې خدای ته سوال وکړ چې الهی پاکه پروردگاره دا د ملك د عزت او پت ځالې ته بد شمال مه رسوې او که په موږ کېږی

خدایه د ده پر ځای هغه مصیبت موږ ته راوګرځوې . نو څه درته ووایم چې په ما څه تېر شول ، او چې جنکیو ته مې وویل ( ملا ګل‌رسول به خپلې میرمنې جنکۍ بللې ) ټولې په ژړا شوې او سرونه یې خدای ته سرتور کړل او تا ته په دعا شوې . د کوز صیاد د جومات امام ، ملا ګل رسول ته په خبرو کې ورننووت : اې زورروره څې کوې ملک شاسوار خو یو د بخت او برخې سړی دي او د خدای د نازولیو نظر پې شته دی . ما پخپله یو وارې ملک صاحب په خوب لیدلی و چې د یو سپین آس تر جلب لاندې روان دی . په آس باندې یو داسې جناب سپور وي چې د نور شغلې یې له مخه پورته کېږي . تر شا یې ګڼ عالم روان وي چې پای یې نه معلومېږي . زه په دې وخت کې ملک شاسوار ته ورمنډه کړم چې دغه مبارک چې ته یې تر جلب لاندې روان یې څوک دی . ملک په خندا کې را ته وو‌ایي ولې دا نه پیژنې ؟ دا خو د زمانې غوث دی . په دې وخت کې زه د غوث صاحب د آس پښو ته ځان ورواچوم او چیغې کړم چې اې لویه ځوانه دا دګناهونو پېټی خو را نه سپک کړه او خپل څادر در را باندې وغوړوه . په دې کې له خوبه راویښ شم ، ټول وجود مې خولې شوی‌وي او له ټولو دیوالونو څخه د الله‌اکبر ناره اوریدل کېږي . نو داسې یو بختور سړي ته څوک ضرر رسولای شي . خدای دې هیڅاته دا وس نه ورکوي چې په ملک شاسوار باندې ان د ګل وارو کړي .

ملا ګل رسول د کلي امام ته چې اوږدې ستاینې او ثنا ته یې ملا تړلې وه خبره ورپرېکړه ، هغه ته یې وویل : مولوی صاحب زما خوښه دا ده چې اوس به ملک شاسوار ته غوږ ونیسو چې د ه څنګه راغوښتي یو او په موږه باندې کومه وراسه خلاصوي .

ملک شاسوار چې په مله یې چپنه کې ناست ؤ د کوټې له سیورې نه

د تیلي څراغ خوا ته را تاو شو . د څراغ ګل یې په ډکي باندې وڅانډه غاړه یې تازه کړه ، لاس یې اوږد کړ ، د ملا ګل رسول تسبې یې د هغه له لاس څخه راواخیستې او ځان یې لکه یو واقعي حقدار سړی او د حیثت خاوند خبرې ته جوړ کړ .

دغه زموږ اندراب بیا په تېره دغه کوز صیاد او نور رانیږدې کلي یوه د عزت ، ننګ او غیرت سیمه وه . دې سیمي یو دود دستور درلود ، څلي او نرخونه یې معلوم وو ، کشر او مشر پکې پېژندل کېده ، د خولې او خبرې سر او سړی معلوم و . دغه څو میاشتې کېږي تاسې یې پخپله وینئ هغه د شانور زوی اسلم چې د بدګشتۍ او ناروا کارونو په وجه له دې ځای څخه تبنتېدلی و ، بیا راپیدا شوی دی‌او د اندراب ټول غله او لټېره کسان یې په ځان را ټول کړي دي ، د سپین ږیرو واک او اختیار یې په کلي کې ورک کړیدی ، زاړه او هېر شوی مرضونه راپاروي او ورک شوی پورونه غواړي . اوس یې زما بدۍ ته ملا تړلې ده . څو وار شیطان را ته وویل چې ملکه د دې مار سر تر کوم کاڼي لاندې کړه خو بیا له ځان سره وایم چې د لاس او لمنې په ککړولو نه ارزي پرې یې ږده ( سر بد به بلای بد ) خو اوس دغه لنډکی مار ورځ تر ورځې ځان اوږدوي او لکه ښامار پوښنار ی کوي .

د تورې چرګې ملا مرغوزي نسوار په پزه کړه . سپوږمې یې پاس کش کړې ، وې پرنجل ، د ګل سیب دسمال یې پزې ته ونیو او د ملک شاسوار په خبرو کې ورننووت : ملکه ته په دې ځای کې ودرېږه ، ښه پوه نشوم . د اسلم د ښامار کېدونه دې مطلب څه دی ؟

ــ مطلب دا دی چې اسلم اوس له ولسوال سره لار پیدا کړې ده .

ـ دا زموږ د ولسوال سره ؟

ــ هو له همدغه ولسوال سره .

ــ ته خو به غلط نه يې پوه شوی ؟

ــ نه زوروره ، د همدې اسلم په باب کې ولسوال ته ورغلی وم د ده د کړو وړو ناستې ولاړې رپورټ مې وروړی و . گل رسوله د اسلم نوم نه و ، بلا وه بلا ، په ولسوال زما خبرې بدې ولگېدې ، مخ يې راباندې راواړاوه ، سترگې يې راباندې برگې کړې او لکه فيل مرغ را باندې ببر شو . له خپل دربار څخه يې وشړلم او سپايي يې را پسې کړ چې له پله نه مې دې خواته راوشړي . هغه زما روپۍ ، هغه زما نيکۍ ټولې ورڅخه هېرې شوې دي . او هغه نا حق قسمونه او قرآنونه چې ما د ده د فايدې لپاره ياد کړي دي ټول اوبو وړي وو . ولسوال پورته پورته الووت او ما عذر ورته کاوه . ور ته ژړل مې مگر ده مخه نه راکوله . اوس د ولسوال صاحب هغه خبرې هېرې دي چې ويل به يې اند راب په ملک شاسوار ښه ښکارېږي .

د کلي امام بېوا که د ملک په خبرو ورگډ شو وې ويل : ملکه د تا کډه خو لا پخوا بار وه . خو لکه چې زما هم بار شوه . موږ به شل واره چهل کاف په ځان کف کاوه بيا به له‌اسلم سره غږېدو اوس چې ولسوال يې هم شا ته دربدلی دی . زما پلاريې هم جواب نلري .

د تورې چرگې ملا د سترگو له کونجه د کلي امام ته راوکتل نرۍ شيطاني مسکاېې په شونډو په گډا شوه ، خوله يې ويره شوه او توره گردۍ ږيره يې لکه د مست فيل‌مرغ ښکې ټوکرۍ ټوکرۍ شوه او ملا ته يې وويل : مولوی صاحب د تا خبرې سمې ندي ، ولسوالان د ميندو او پلرونو پر ځای دي او ملکان د هغوی لاسونه او پښې دي . ولسوال هيځ وخت د ملک شاسوار آبرو په اسلم او داسې نورو لچکانو باندې نه خرڅوي ، ولسوال هيځ کله خپله ملا پخپله نه ماتوي .

ــ نو ولې يې ملک شاسوار سپک کړ ؟

ــ ملا صاحب د ولسوال سپکاوی ، سپکاوی نه دی ، هغه یو خبرداری دی .

ــ د څه شي خبرداری ؟

ــ ملك شاسوار به یې په وخت پوښتنه نه وي کړې ، رسیدګي به یې نه وي ورته کړې ، پیسو ته به یې ضرورت پیدا شوی وي . څه بله اړتیا به لري .

د تورې چرګې ملا غاړې تازه کړې په ږیره یې ورو لاس راتېر کړ او په موسکایې د کلي امام ته په خطاب کې وویل : حکومتي کسان زود رنجه خلك دي . که درته ووایم دوي هم ډېر ملامت نه دي . خورانو په هره چوکۍ باندې کوټه لوټونه ورکړي دي . ته زموږ د کلي د کندل زوی په نظر کې ونیسه، هغه د بنو لېسه خلاصه کړه ، کندل خپله باغچه ورته ګرو کړه او زوی یې په خان آباد کې د احصائیې د کاتب په چوکۍ کېناوه .هغه دی اوس یې خولۍ په غوړیو کې لوېد لې ده . د نیمایې کلي مځکې یې ګرو کړې دي . دا خو د تخم او د حاصل قصه ده . تخم وشیند ه او حاصل واخله . د تخم له شیند لو څخه پرته درمندونه چا اخیستی دي ؟ دا د دنیا کار دی ، کښت به کوې بیا به حاصل اخلې ، او له اورېدو زموږ ولسوال صاحب داندراب ولسوالي په درې لکه روپۍ اخیستې ده . هغه ددې کار لپاره د کابل په ده بوریو کې خپل کور خرخ کړ . اوس هرومرو د کور د خرڅلاو تاو باسي . زموږ د ابراهیم زوی ته ګوره په کندو کې یې د موږك لکۍ نه سپېره کېده ، خو بیا یې چې خدای توبه ومنله او په نهرین کې ګدام دار شو اوس یې په کور کې غالۍ نه ځایېږي او قشخانه یې هیڅکله بې څو تنو مېلمنو نه ده . پلار خواریې په پردیو خد متو کې مړ شو او ټول ژوند یې په مړه ګېډه ډوډۍ و نه خوړله ، دا خو لا پرېږده د دانې علاقدار وګوره تېره

جمعه د مالیې مامور ته په مېلمستیا راغلی و او چې لیدلې دې وای: دا جیپ موټر څه وایي، او دا خرڅ او سخاوت څه وایي. جنکیو راته ویل چې علاقدار څه کوې چې تاېې ښځې لیدلې وای، هره یوه تر سرو زرو لاندې ډوبه وه. دا د لاس بنګړي، غاړه کۍ، امېلونه، د لاسو ګوتې، ډېډې او د ویښتانو ځنځیرونه یې ګرد سره د سرو زرو او پې د پاسه رنګارنګ غمي کتار شوي وو. ولسوال خو پر دغو لغړیانو ډېر د پاسه دی مګر په جانداری کې تر دوی پاتې دی. دی باید خپل غارونه او غچوړي ډک کړي. اوسنۍ آمدني خو یې د ښځو او خپلوانو تر سوغاتو هم نه وزي. په دې میاشتو او ورځو کې داسې ښکار هم نشته چې د ده منګولې او مشوکه پې سره شي او وزرونو ته یې قوت ورسېږي، نو خامخا به غوسه کېږي، نامیندي ورپیدا کېږي او له یو چا څخه خو به تاو باسي.

ملک شاسوار په ځای کې سره وخوځېده، د تورې چرګې د ملا خبره یې وشلوله او وې ویل: ملکۍ پخوا خوند کاوه، هغه پخواني ولسوالان چې موږ لیدلي وو، اوس نشته. د هغو تله ډېره درنه وه. د ملکانو او خانانو په عزت‌او قدر پوهېدل. چې په وینو ککړ پکړ به یې ولیدې او مخامخ به یې په غلا ونیولې پرده به یې دربانده‌ې اچوله، د رعیت تر مخ به یې نه سپکولې، ځان به یې مړاوه لیکن د ملکانو دسترخوان یې نه ټولاوه، خو کله چې کټېیلی د خولۍ او سګرټو ولسوالان راپیدا شول د ملکانو برکت او عزت هم ورسره ولاړ، له موږ څخه د دوی لار ورکه شوه. په خبره نه سره پوهېږو او باور نشو سره کولای.

ملا ګل رسول د ملک شاسوار په خبرو غوږونه څک کړل او په ښوېېدو ښوېېدو ملک ته ورنیږدې شو. وې ویل: البته ما ته ډېره بې

ادبي ده چې زه د ملك په مخكې دا خبرې كوم . دی به خيال كوي چې اوس ملا گل‌رسول غواړي ما ته سبق راكړي . ليكن دوست ته بايد سړی د زړه خبره وكړي . زما خيال دا دی چې ولسوال صاحب تا ته ځكه غوسه كړې ده چې له تا نه اميدونه لري .تا پوه كوي چې اې سړيه وږې يم ، پسمانه يم ، جيب غواړم ، كور غواړم ، ځان پوره كوم او په تا يې پوره كوم . گوره ملك صاحب اوسني ولسوالان تر پخوانيو خراب نه دي ليكن د دنيا دود دستور بدل شوی دی . پخوانيو ولسوالانو ته آس پكار و ، ليكن اوسنيو ولسوالانو ته موټر په كار دی ، هغوی د خټو او گټو كورونه جوړول دا اوسنی سمټي كوټې جوړوي او قدنما آييني پكې ږدي . د چلم ځای سگرټو ونيو ، د تنبور او غبچكې ځای را ديو ، د شوروا ځای پلاو، د استالفي كاسو ځای چيني. رواجونه بدل شوي دي ، عطرونه او سينگارونه را پيدا شول . شام پاريس او لندني پوډر را پيدا شول . د دنداسې ځای لب سرينو ونيو او ښځو پتلونونه واغوستل دا ټولې خبرې خو مصرف غواړي . موږ او تاسې مجبور يو چې دا مصرفونه ور پوره كړو .

ملك شاسوار چې كندو ته تكيه وهلې وه ، په چكمن كې را تاو شو ، پلتۍ يې ووهله وې ويل : ملا گل‌رسوله رښتيا رښتيا دي ، زه خو اوس ډېر په تنگ شوی يم ، زړه مې راته وايي رائحه دا ملكي پرېږده او په دې آخر عمر كې توبه وباسه او مخامخ په جومات ننوزه ، متل دی وايی ( از بچه گی تا جوانی، از جوانی تا به پيری ، از پيری تا بكی ) يوائې دغه داسلم علاج مې كړې وای بيا توبه او گوښه گيري دواړه آسانېد ل .

ملا گل‌رسول د دې خبرې په اورېدو نا قرار شو ، له ډډې په زنگنو كېناست او په هيجاني لهجه يې ملك ته وويل : نه ، نه ، نه ،

هیڅکله به داسې نه کوې، دا فکر د تا نه دی دا د ښمن د تا ذهن ته درننه ایستی ، توبه توبه چې له ولسوال صاحب څخه مخ واړوې ، نه نه ملکه که داسې وشي زموږ کلي او کورونه به په صیاد کې اور واخلي ، دا دا سلم لنډه غران به له خلکو نه ښځې بوزي او د سیمې سپي به زموږ د بچیانو په غوښو ماړه شي . دا خو بالکل شیطاني فکر درپیدا شوی دی ، شیطان خو د خدای دښمن دی لاحول ورته ووایه ، د گوښه کېدو فکر له سره و باسه ، تا څوک اوس په گوښه گیري او توبه کې نه پرېږدي ، له تا نه د صوفي توب وخت تېر شویدی ، که ته مشرتوب پرېږدې مشر توب تا نه پرېږدي ، خدای مکړه چې ته د حکومت له سیوري‌او د زورورو له رغولي را لري شې والله که د دې اسلم د لچکانو له لاسه یوه شپه په صیاد کې تېره کړې ، ته داسې مه کوه چې د پزې د گټلو له پاره سر بایلې ، د حکومت له زوره ځان مه جلا کوه . تر دې چې سبا د اسلم څپېړو او د دوستک د زوی پیغورونو ته ناست یې همدا د ولسوال منت او زور زیاتی درته ښه دی. که زما منې همدا سبا یو سخوندر ، پنځوس منه وریجې ، پنځه منه ژېړ غوړي یو څه نقدې روپۍ درواخله او د ولسوال کور ته یې یوسه . دوه درې ورځې وروسته خپله ورشه و به گورې چې ولسوال هغه پرونی سړی نه دی ، مخه به درکړي ، مهرباني به درسره وکړي او خبرو ته به دې غوږ ونیسي . گوره ملکه دا دومره جایداد ، مځکې ، گروۍ ، ځنگل څه کوې ؟ دا خو همدې ورځې ته په کار دي ، ښه مال خو د بدې ورځې دوا ده، خلک وایي : زر تر سره جار ، سر تر ناموسه . چې جومات ته نشې تلای ، په پټیو کې نشې گرځېدای ، د کلیو په مړي او ژوندي کې برخه نشې اخیستلای ، پخپل کلي کې چا ته دومره نشې ویلای چې پښې دې‌درټولې کړه، داهم ژوند دی ؟ په دې کې د ولسوال

څه تقصیر دی . ولسوال د تا ورور نه دی ، هغه ته تاسې او بل څوک توپیر نه لري ، په هغه باندې خپله خبره گرانه ده ، د هغه عقل ته به د خبرې له لارې ورننوزې ، که د خبرې حساب دې ورجوړ کړ هغه به بیا د تا وي ، ورور دې هم دی ، عزیز دې هم دی ، وکیل دې هم دی او بیا په کلي کې هر څه چې ته غواړې هغه به کېږي . اسلم او د دوستک زوی ، هغه بل جبار لچک او د دوی ملگري به ولسوال ته څه ورکړي ؟ دوی پخپله د نورو خلکو خیرات او کاسو ته ناست دي ، دوی له تا سره مقابله نشي کولای ، دوی له تا څخه دا خدا داد عزت نشي اخیستلای . لیکن ته باید د خپل عزت د ساتلو په طریقه پوه شې او ځان په دې خبره وپوهوې چې په ډېره سخته دښمني ککړ شوی یې . داسې اور دې لمنی ته لوېدلی دی که ځان ځنې خلاص نکړې له بېلهېو تر مرۍ پورې به دې وسوځوي ، اسلم لکه کوډگر د اندراب زلمیان د خپلې ژبې تر جادو لاندې راوستي دي . اوس یې له صیاده هم پښې او لکۍ وتلې دي ، د شاشان ، قاسان ، بنو او ارزنگان په سیمو کې یې ملگري پیدا کړیدي . د ملک یوسف زوی یې هم بې لارې کړیدي . ما داسې واورېدل چه هغه خپله خور اسلم ته ورکوي ، دا لا څه کوې د بنو او ده سلا په مکتب کې یو څو تنه ښوونکی هم له دوی سره گرزي . هغوی هم د اسلم ثنا او صفت ته ملاتړلې ده ، خبره لویه ده ملکه او د سیلاب مخه د تا کور ته درسیخه شوې ده ، لویه بلا خو لوی تاوان غواړي ، د غفلت پنبه له خپلو غوږو څخه وباسه او تر اوسه چې لا اوبه له ورخه نه دي تېرې شوې ځان تیار کړه .

ملک شاسوار دواړه سترگې په ملاگل رسول کې خښې کړې ، وېرې او تشویش یې په مخ او سترگو کې څپې وهلې ، د سترگو مردکي یې د سر په کاسه کې رډ رډ راوتلي وو ، غوږونه یې څک شوي او ژور

اوسبلي يې ايستل، دی وپوهيده چې مصيبت لوی‌دی. كوم د گناهونو درونند پېټی چې يې د ژوند تر دې واټن پورې په شا راوړی و ، د ده ملا يې ورغبرگه كړې وه . فكر يې كاوه چې اوس د دا سې گړنگ غاړې ته رارسېدلی دی چې د بېرته گرځېدو لاره نه لري او د لټی لپاره د ده توان پای ته رسېدلی دی . زړه يې بېواكه درزيده او په سينه كې دننه يې د ژور سوي احساس كاوه . په هر لوري او هر شي كې يې اسلم كوت . د تصوراتو دنيا يې گرد سره په اسلم ډكه شوې وه . د ملاگل رسول په قصو او مشورو يې زړه نه‌تم كېده او تنده يې نه پې ماتېده ، تصور يې كاوه چې په كرونده كې وژل شوی دی ، كلا ، كادانو او قشخانې يې اور اخيستې دی، لورانې او بيبي يې سر تورې شوې دي، له غرونو څخه سيلاب راغلی دی او د ده باغچې او ځنگل يې لاندې كړيدي ، اسلم يې په كور ورننوتی دی او د ده واړه حلالوي ، ترخو مفكورو او ويروونكو تصوراتو را چاپېر كړی و . او ده لكه چاپېر شوی ښكار كوښښ كاوه چې د ژغورېدو او تښتېدو لار پيدا كړي . كله كله به يې په همدې تصوراتو كې سترگې د كوټې په يوه ديوال باندې ځای پر ځای مېخ شوې او د ذهن حضور به يې له لاسه وركړ .

د كلي ملا د ملاگل رسول د خبرو په مينځ كې ورننووت په ملك باندې يې غږ وكړ : ملكه خيريت خو دی ، دا رنگ دې ولې داسې تغير شوی دی ؟ ولې داسې ساړه ساړه اوسېلی باسې ؟

ــ نه نه ملا صاحب هسې خوشې ...

ملك يوه شېبه ، لكه سړی چې نوی له خوبه راويښ شي ، اوتر اوتر وكتل بيا يې خبره داسې راونيوه : ملا صاحب سخته را باندې راغلې ده . ټوله دنيا را ته اوښتې ده . زه به د چا د ځواب او تورې شم ، ما ته ټول اندراب گواښي ، بخت مې اوښتی دی . هرگام چې اخلم

لوېږم ، هر گوزار چې کوم خطا کېږي ، د هر اقدام نتیجه مې چپه راوزي ، یوه زمانه پدې اندراب کې هیڅوک ما ته په مخ نه شو راتلای . چا له ما سره زور نه ازمایه ، ملکانو او خانانو به له ما ډډه کوله ، بې زما له خوښې په دې کلي کې چا لور نه شوه ودولای . خو اوس د د هقانانو او ژرنده گرو زمن په ما پورې خاندي . اسلم ، قاسم خان او جبار له ما سره تربگني کوي او زه یې له مړي ژوندي او کور کلي څخه ایستلی یم .

ملک لکه د ښځې مار چې پیتاوي ته اچول شوی وي کرار کرار تود شو . په مخکې یې د وینې سور والی راغی او راوغوړېده ، غاړې یې تازه کړې او خبروته یې داسې دوام ورکړ : دغه گل رسول ته معلومه ده، ملک له دې خبرې سره سم گل رسول ته په لاس اشاره وکړه ، په همدې کلي کې د ستار ورور ووژل شو، لورانې یې لکه مېږې خرڅې شوې ، ځمکه او ژرنده یې میرزا قاسم او ملک امرالله سره ووېشله ، مگر داسې نر دلته پیدا نشو چې د هغه غږ پورته کړي ، بداو پوریې وغواړي . زمن یې لا تر اوسه په اشکمش کې د یو بل مزدوري کوي . وایم د عریضې یې څوک پید ا نشو . ما چې څوک وهلي دي هغه خدای هم وهلي دي ، آواز یې ملائکو هم ندی اورېدلی . مگر اوس چې روزگار په ما راوستې ده د ترکاڼانو ، ژرنده گرو او د پرونیو څپېړ خورو زمن سیالي راسره کوي . ما دا ځوروي چې نور مارانو وچیچل او زه کربوړي . له ما څخه د ودو شویو ښځو او برباد شویو کورونو حساب غوښتل کېږي . په ما باندې نوي نرخونه او نا دودې راتپل کېږي . که چېرې ما دې حسابونو ته تن ورکړ چې بیا دا ټول اندراب زما هم شي زه دا حسابونه نشم خلاصولای . ملک مخ ملا گل رسول ته ور واړاوه ، خبرې یې داسې اوږدې کړې : گلکه (ملک به د تصغیر

لپاره ملا گل رسول گلك باله) ماته راپیښنه شوه البته قسمت به مې دغسې وي چې لاس مې له وینو څخه نه راوزي ، پروا نشته پخوانیو به ویل د پړانګ برخه وینه ده ، د تا ټولې خبرې مې ومنلې زه به دا خپل جایداد تر خپله عزته قربان کړم . زه به د هر لچک د سر په کدو با ندې د زرو تاوان پرېکړم . زه به د دې اسلم د لچکانو له کدوانو څخه خامخا دا اوسنی بخار وباسم. زه به دا ولسوال ، داقاضې، څارنوال او دا نور ټول په روپیو واخلم ، یو وار به بیا دا کلی دعزت کلی کړم ، دا جومات به جومات کړم او ټول اندراب ته به وروښیم چې له ملك شاسوار سره د گوتو ماتول د سر په بیه تمامېږي . ملك هیجاني شو ، آوازیې جګ او ډډ شو، غریو ورپیدا شو . ویې ژړل او د کلي ملا ته یې وویل زه به یوار بیا د کلي ژرندې په وینو وگرزوم ، زه به په دې لچکانو باندې میندې او خویندې وژړوم . که ما د دوی خویندې او ښځې لیلام نه کړې زه به شا سوار نه یم او له خپله پلاره به نه یم زېږېدلی .

د کلي ملا ملك شاسوار هیڅکله په داسې هیجان او زبردستۍ کې نه ولیدلی . ووېرېده او لکه تښتېد لی مږز زبون وهلی د بوغبند او دېوال تر مینځ په خالي ځای کې ننووت ، په لنگتیۍ شو او ملك ته یې په ماته درویږ گره خوله وویل:نه ملکه تا څوك نشي څملولای . عزت او ذلت د خدای له لوري دی ، د تا عزت خدایی عزت دی څوك یې نشي درڅخه اخیستلای ، ملا صاحب غاړه تازه کړه چې په دې باب شرعي مسألې وکړي او ملك شاسوار ته د آسماني امداد ډاډگېرنه ورکړي په دې کې د تورې چرگې ملا د کلي دامام پښه کښېکوده او له خبرویې منع کړ او خپله تر یوې چوپیا وروسته په خبرو راغی : ښه ملکه اوس خو د خبرو سروخوت اصلي مطلب ته به راشو.

ملك چې له هيجان څخه رالوېدلی و په کرار آواز يې ځواب ورکړ : هو اصلي مطلب ته به را شو .

ــ ښه ستا څه خوښه ده ؟

ــ زما خوښه دا ده چې همدا سبا به زه پخپله د تا دغه لومړنۍ نسخه وکاروم ، وريجې ، غوړي او پيسې به وروړم خو د سخوندر په ځای به يو څه پسونه او چرګان را سره يوسم او هماغلته د ولسوالۍ په شاوخوا سماواتونوکې به ورته پرېوزم .

ــ په خوله دې برکت شه اوس دې زما تسلي وکړه . ښه نو اوس ما ته څه امر کوې ؟

ــ ته خپله کاروايي پيل کړه ، خو په لومړي سر کې دا د کلي ملا صاحب پوه کړه چې زموږ د دغې نن شپې د مرکې راز د باندې ونه باسي او په دې ورځو کې هېڅکله هم د جومات څخه لرې نشي . د جومات چړي او طالبان دې پوه کړي چې د اسلم ډله وڅاري او په ټولو کړووړو يې ځان خبر وساتي .

د تورې چرګې ملا له توشك نه درغولي ټغره ته راوښويېده ، ملك ته ورنږدې شو او هغه‌يې مخاطب کړ : رښتيا ملکه يو عجيبه مې پرون واورېده . يو سړی چې ( حسن کلته ) نومېږي او د آسونو غل دی، د آسونو له يوې ګلې سره دپارندې په لار کې نيول شوي دی . ښايي نن‌يې ولسوالۍ ته راوستی وي . آيا ښه نه درته ښکارېږي چې دغه سړی پخپل اقرار کې د اسلم او د ده د يارانو نومونه د خپل جرم د شريکانو په توګه واخلي ؟

د دې خبرې په اورېدو د ملك سترګې برګې شوې ، وينه‌يې په مخ کې وځغلېده ، له ځايه راولاړ شه غېږيې د تورې چرګې په ملا راوګرځوله او چيغې يې کړې : پيدا دې کړه ، پيدا دې کړه . زه خو وا

یم گلکه چې ته شیطان یې شیطان ! دا خو دې داسې دوا پیدا کړه چې د سلو مرضونو علاج پې کېږي . همدغسې ځای مې ورته غوښت خو نه پیدا کېده . واوا، هزار رحمت گلکه !

د تورې چرگې ملا د واسکټ جیب ته لاس یوووړ ، د پزې د نسوارو ښیښه یې راوایسته سریې پرانست او نسواریې د لاس په رغوي کې واچول . مرغوزي نسواریې د چپ لاس له رغوي په گوتو راواخیستل په تبختریې پزې ته کش کړل او په همدې کې یې ملک ته وویل : ( چو یک در بسته گردد صد در دیگر شود پیدا )

ــ حق حق گلکه ، نن خو دې د ننبې مینځ و ویشت . که زه با چا واي نن خو مې باید خوله په سرو زرو او لعل او جواهرو در ډکه کړې وای .

ــ اوس نو ملکه سبا ته د محبس د قوماندان تالو هم یو ځه ورخوږ کړه .

ــ پوه شوم ، تر پایه ورسېدم ، د خبرې تل ته ورولوېدم . گلکه اوس د تا اصلي وظیفه دا شوه چې د آسونو د غلاد دوسیې لاره هواره کړې او دا دکلي جوارگران او لچکان د همدې دوسیې په مزي کې سره وپیيې .

د تورې چرگې ملا مسکې شو او ملک شاسوار ته یې وویل: گوره ما هم له تا سره شاگردي کړې ده !!!

ــ اوس ته پخپله داسې استاد شوی یې چې د ما رنگو لاس تر شا تړې . خیر که مړ نه وم زه به دې د دې مېړانو بدله ادا کړم گلکه !

لمر د صیاد ختیځ لوري ته د غرونو د پا سه د شغلو پر پټاره پلترئ وهلې وه . ګهیځ د شوتلې د ګلانو او څنځلو د راخوټېدلیو غوټیو د عطرو څپې د پسرلنیو غنمو له وږم سره یو ځای له کروندو څخه کلیو او کورونو ته را شېلې . د سحر وږمې د پرا خې درې په لارو او واټونو کې د وحشي بوټو او شنېلیو خوشبویي د لارویانو سپوږمو ته ورشیندله . په کروند وکې د چونچڼو ، بلبلانو ، مېزانو او غرنیو مرغانو زړه وړرنکی شور او سندرې خورې وې . د تودې ډوډئ او سویو لرګیو بوی ، د سین شنهار او د کلیو د پا سه د نغریو او تنرونو د نیلي لوګي چتر ، طبیعت او انسا ني محیط دا سې سره اوبدلي وو چې درې ته یې واقعي ، بې سارې او بې بدله ښکلا ورکړې وه ، هغه ښکلا چې د پلټونکي انسان په زړه او پلو کې د امید تودوخه ژوندئ ساتي او باور وربخشي .

قا سم د زین کړي آس په روستاړي پورې د سنیو خورجین وتاړه ، د آس په ورمېږ او ساغریو یې لاس راتېر کړ ، هغه یې ونازاوه او د ورمېږ څنې یې ور ږمنځ کړې ، ملونه یې وروا چوله او د ا نګړ په لویه دروازه یې کوڅې ته راویوست ، له آس سره جلوکش د کوڅې په اوږدو کې د لویې لارې په نیت رهي شو . کله چې د کلي له جومات څخه را وا وښت په کوڅه کې یې په ملک شا سوا ر باندې نظر ولګېده . ګلک او نور کسان چې د بازا ر په ورځ بنو ته روا ن وو ، تر ملک راچاپېر شوي وو . ملک د قاسم په لیدلو د کوڅې له مینځ څخه د خپلې کلا د روا زې ته په شا شو . له د ه سره ولاړ کسان هم په ده پسې ورڅنګ ته شول او لاره یې آ زاده کړه . قا سم د آس ملونی ته ټکا ن ورکړ او د ملک د غوږ وهنې لپاره یې آس ته کنځله وکړه او ورسره یې لاسونه د

زین په کوبۍ ټینګ کړل ، بې له دې چې پښه په رکاب کې کېږدي ، په تګ کې یې زین ته ورودانګل او پکې کېناست ، سمد لاسه یې آس ته تازینه ورکړه او د کلي له کوڅې څخه لویې لارې ته ووت .

ملک شاسوار سم د لاسه د تورې چرګې ملا ته مخ ور واړاوه : کبرونه خو مې ډېر لید لي دي ، لیکن د دې لنډه‌غرو کبر په صیا د کې نه ځایېږي .

ــ دا کبر به یې ډېر ژر په سر ورمات شي . وایي د مېړتانه چې ورکه راشي وزر با سي .

له دې خبرې سره سم ملک شاسوار د تورې چرګې ملا ګوښې کړ او پوښتنه یې وکړه : د محبس د قوماندا ن خبره څنګه شوه ؟

ــ هغه راسره ومنله ، د چهارشنبې په شپه به ( حسن کلته ) له محبس څخه خپل کورته راولي او له ما سره به یې کېنوي . د کلته یو خوریې چې په باجګاه کې اوسېږي او کله خور دی ، د هغه درک مې هم لګولی دی . زه به د خدای په فضل دغه کلته ټولو خبروته تیار کړم ، لیکن د محبس قوماندان ډېر څه غواړي .

د لته د ملک سترګې کږې شوې . شونډې یې بوڅې کړې او تعجب وهلي بڼه یې غوره کړه ، وې ویل : مثلاً څومره غواړي؟

ــ یاره ملکه ډېرې زیاتې . هغه وایي که چېرې حکومت په ما خبر شي چې ما حسن کلته د ناروا تورونو ټړلو ته مجبور کړیدي ، زه به له مسلک څخه طرد شم او خدا زده څو کاله بند به را باندې وخېږي .

ــ نو بیا څه ؟

ــ ډېرې زیاتې غواړي . خو زه لا ډغرې ورسره وهم . خدای مهربانه دی ، نن چې د بازار له کاروبار نه خلاص شم یو وار ورګرزم

یوه پهلواني به بیا ورسره وکړم ، اندا زه به یې ولګوم .

د ملک رنګ لږ تغییر شو ، شونډې یې وچې شوې او د تورې چرګې ملا ته یې وویل : زه خو هم دا ډېر کلونه کېږي ملکي کوم ، د دې کارونو دود او دستور رامعلوم دی . دا نرخونه ولې زما لپاره بدل شول ، بیا د محبس قوما ندا ن خو زما پخواني معامله دا ردی ډېر خد متونه مې ورته کړي دي .

ــ ملکه دا د حکومت کسان لکه د حمام لنګونه دي ، وفا او بقا نه لري ، نن یې زه تړم ، سبا یې ته تړې او بل سبا یې بل تړي . دوې د پیسو یاران او د ګټې ښاماران دي ، دوې دکاند اران دي . پیسې ورکړه او خپله سودا ترې واخله ، که لږ پام وکړې دا اوسنۍ معامله یو څه سخته هم ده . دغه اوس دستي دې د دوستک زوی و نه لید چې څنګه په شړق درڅخه تېر شو . اسلم خو لا سم د تا سر ته ناست دی او که ته دغه لچکان له خپلې مخې لري نکړې ، هغوی دې نه پرېږدي او چې لږ پوه شي چې حکومت پر تا لاس نه نیسي والله که دې په سر صرفه وکړي یا په مال .

قاسم په‌لویه لارکې د هغو سپرو په لیکه پسې سیخ شو چې د بنو د بازار ورځې ته‌یې ځان رساوه . د لارې په ګڼه ګونه کې د قاسم نظر په معلم جمعه باندې پرېووت ، ورغږ‌یې کړ او هغه‌یې خپل شا ته سپور کړ ، بیا یې سم دستي جیب ته‌لاس کړ او د نسوارو کډ و چې په خولبوی پورې یې د مریو څونډی ځوړوند و له جیب څخه راو یوست ، لاس یې شا ته ورغبرګ کړ او معلم جمعه ته یې د نسوارو ست وکړ : واخله معلم صاحب چې پرون یوه انډیوال له پل‌متک څخه راته راوړي دي .

ــ څنګه دي ، ډېر زورور خو به نه وي ؟

ــ هغه خبره به دې اورېدلي وي (د بلهای سړی لور د پلار په نوم پورې ودېږي)، دې نسوارو هم په متهک پورې نوم پیدا کړی دی مگر زموږ د صیاد تر نسوارو ښه نه دي . په دې کې قاسم یوه شېبه چوپ شو . د آس ملونه یې راښکوده، په زین کې را په ډډه شو او خپلې خبرې یې داسې له سره راونیوې: بېگاه شپه ملك شاسوار زما ابا کلا ته ورغوښتی و ، د زاریو او عذر په غاړه یې ورته ویلی وو چې قاسم خو ښه سړی دی او په ما ډېر گران دی ، لیکن د بدو خلکو سره سردچار شویدی . بیا یې د اسلم نوم وریاد کړیدی ، جبار یې وریاد کړیدی او دکلي شا و خوا نورو انډیوالانو نومونه یې وریاد کړي دي . بیا یې حمید خان معلم صاحب په خوله کې ورکړیدی چې دغه معلم د حکومت دښمن دی او په پاچایې کارونو کې گوتې وهي . زما ابایې ډېر ډار کړی دی ، په پای کې یې ورته ویلي دي چې قاسم لا تر اوسه د کندې تل ته نه دی ورلوید لی زه یې له ولسوال صاحب نه خلاصولای شم خو پدې شرط چې له بد و گرځېدو څخه لاس واخلي او اسلم له ځان څخه لرې کړي . او په پای کې یې زما ابا ته خپله یوه زړه چپنه هم د تارتق په توگه ورکړې وه . زما ابا ډېر ډار شوی ؤ . ملك ته یې ژړلي وو ، عذر او زارۍ یې ورته کړې وې ، او د خدای او قرآن روی یې وراچولی و ، په ډېر بدحال کورته راغی ، زړه پکې ویلې شوی و . تر نیمې شپې پورې یې زه ترټلم، عذریې راته کاوه ، سریې راته لوڅاوه او له ژړا څخه شین شین راته اوښت. ویل یې ما د ظالم لښتوته مه ټېله ، ما زمریانو ته په غېږ مه وروله او زما غریب کورته اور مه راننه باسه . داسې سلگۍ یې وهلې تا به وې زړه پکې د ننه وچاوده . هر څومره تسلا مې ورکوله نه کرارېده . نیمه شپه یې له کوټې څخه راووتم او کرۍ شپه مې په انگړ کې په گرزېدو تېره کړه . له لمانځه وروسته مې آس

زین کړ ، راووتم سم د لاسه له ملک شاسوار سره په کوڅه کې مخامخ شوم . د لېونتوب سېلاو راباندې راغی ، زړه مې راته وویل په همدې خپله دروازه کې یې تازینه سر ته ونیسه او د آس تر پښو لاندې یې وچرموړه او بیا یې لکه ورغومی په تقم کې واخله او د ابا پښو ته یې ورواچوه ، وروسته چې خدای هرڅه پېښ کړي وي هغه به پېښ وي .

معلم جمعه د قاسان اوسېدونکې و ، د ښایسته ځوانۍ او سپین پوستکی خاوند ؤ ، لوړه زده کړه یې کړې وه ، د اندراب د بنو په لیسه کې یې تدریس کاوه ، له موسیقۍ سره یې زیاته علاقه لرله ، دنبوره یې ښه غږوله او مروجې ولسي غاړې او سندرې یې ډېرې ښکلې بللې د ظریف طبیعت ، خوشحاله اروا او خوږې ژبې په خاطر د سیمې په زلمیانو باندې ګران و . ودونو او خوښیو ته به یې له ځان سره بیوه او په کلیوالو جنجالونو کې به یې ملاتړ ورکاوه .

معلم جمعه څو واره په نا معلومه علتونو بندی شوی و . له ملکانو او د سیمې له کله خورو سره یې نه لګېده . د کومې خاصې ایډیالوژۍ پا بند نه و . لیکن له سلطنتي نظام سره چپ و . په درسي ساعتو کې به د ا ستبداد پر ضد غږېده ، خود سرکشۍ او پاڅون په باره کې یې موعظه نه کوله ، د سیاسي بدلون لپاره به یې په پارلماني انتخباتو او د خلکو د حقوقو او آزادیو د بسیاییني په قانون او هوارو لارو باندې تاکید کاوه .بلهې خواره به یې رسوا کول او د دولتي اداري ناوړتیاوې به یې بربنډولې . دولس کاله وړاندې کوم وخت چې معلم جمعه لا تنکی زده کوونکی و، په شاشان کې د یوه واده په وخت په یوه نجلۍ مین شوی و . هغه مینه یې سر ته و نه رسېده او ده بیا واده ونکړ . خپل معاش به یې په خوریانو چې خورا نشتمن وو، لګاوه. پخپله یې په خپلې کوچنۍ کروندې او حویلۍ کې د بلخي ناکو د باغچې په حاصل ګوزاره کوله .

جمعه خان د قاسم خبرو حیران کړی و . وېرېده که چېرې ده ته نصحیت وکړي دا سرکشه او جنجالي زلمی به له ځان څخه خپه کړي او د هغه د پام اړونې لپاره یې نسوار تو کړل او وې ویل : قاسمه ته خو د لیک او لوست په زده کولو کې ډېر پاتې راغلې ، باید چې تر اوسه دې ډېر پرمختګ کړی وای . څنګه ؟

ــ معلم صاحب یو خو د کور او کروندې غم رادغاړې دی او بل لور ته مې د اسلم بېوزلي او مظلومیت ځوروي ، ملک ورځ تر ورځې غاښونه ورته تېره کوي او د سیمې ټول ظالمان یې ورشکاري ، همدا اوس یې بیا د تورې چرګې ملا او د ولسوالۍ ټپوسان پسې را سم کړي دي . دا زموږ د جومات امام ګورې ، ډوډۍ موږ ورکوو ، لرګي موږ ورته راوړو ، کور او کهول یې موږ ساتو لیکن ملاتړ د ملک شاسوار کوي . دا لا څه کوې طالبان یې د ورځې شولې ورسره ټکوي ، سرې ورسره چلوي او خدای مې دې غاړه نه نیسي د جوما توالو خبرې هم وررسوي . پرون مې واورېدل د تورې چرګې ملا کابل ته ځي . دغه سړې ډېر بې ایمانه او جال ساز سړی دی او د پېسو لپاره هرې مردا رۍ ته ملا تړي .

معلم جمعه وویل : آیا نشي کیدی چې له ملک شا سوا ر سره د اسلم روغه وشي ؟

ــ زما په خیال ، نه .

ــ ولې ؟ دا خو د قوم او ټولو خلکو مروجه لار ده .

ــ ملک شا سوار اسلم خپل سیال نه بولي . د هغه حق ته غاړه نه ږدي او له هغه سره روغه د ځان سپکاوی بولي . په دې باره کې اسلم څو څو وا ره د تل میرغازي د مولوی صاحب ، د حاجي صاحب عبدالاحد خان او سناتور سید اشرف خان د منځګړتوب مطالبه وکړه ،

لیکن ملك شاسوار له اسلم سره روغې جوړې ته تن ورنکړ او په غوڅه د هغه له پور څخه منکر دی

ــ ښه نو ستا په خیال څه به کېږي ؟

ــ قاسم په دې پوښتنه هیجاني شو ، آس یې ودراوه ، په زین کې راکوږ شو او معلم جمعه ته یې وویل : وینې به توییږي او حساب به پاکېږي !

ــ دا خو د فیصلې ښه او معقوله لار نه ده . په دې توګه خوغوټه نه خلاصېږي بلکې غوټې ته بله غوټه ورلوېږي . پخوانیو ویلي دي « وینې په وینو نه وینځل کېږي او اور په اور نه مري . »

ــ په هر ځای او هر وخت کې داسې نه ده لکه چې ته وایې . مثلاً همدا د اسلم فقره به راواخلو . هغه ته د ناموس معامله وړپېښه ده که هغه خپل حق ترلاسه نه کړي او یا خپل کسات وانخلي ، بیا به څنګه کولای شي د اندراب په ننګیالیو او بانا موسه خلکو کې لکه یو نارینه په جګ سر ژوند وکړي . هغه په دې پېښه کې درې لارې لري ، یا باید خپل حق ته ورسېږي ، یعنی له ملك شاسوار نه بد او پور واخلي یا د نارینه په توګه وینې وبهوي او د پیغور په خټو خپلې ککړې شوې جامې د کسات په وینو و وینځي او یا کې یې کړي او یا د سپک شوي او بې غیرته سړي په څېر له اندراب څخه وتښتي . پور او بد خو شاسوار نه ورکوي او اسلم چې غیرتي سړی دی له اندراب څخه هم نه تښتي ، د مور او پلار هډوکي نه خوشي کوي ، پاتې کېږي یوه لاره او هغه د وینو تویولو او کسات لاره ده .

ــ اسلم یووزرې سړی دی ، هغه ته به سخته وي چې د وینو لار غوره کړي .

ــ نه هغه یووزرې نه دی ، د صیاد ګرد ( شیربچګان ) په هغه پسې

ولاړ دي . مگر زه او ته نه یو پسې ولاړ ؟

ــ دا د دوستانو او یارانو لوی شمیر ځای نه نیسي ځکه چې جنګ د توري نه دی ، جنګ د پیسو ، واسطو او د سیسو دی .

ــ نه نه معلم صاحب تر پیسو او واسطو یې نه سره پرېږدو ، دلته پخپل کلي کې د ټوپک او سیلاوې په خوله فیصله سره کوو . وینې به بهېږي او سرونه به لکه د کدوانو پکې رغړي . پوروړي به مري او پوردار به حق ته رسېږي .

ــ قاسم خانه په دې کې د اسلم او د صیاد د ځوانانو ورکه ده.

ــ ورکه مرکه نشته ، سم صفا ملک وژنو ، کورته یې اور اچوو او سم د لاسه غرونو ته خېژو .

ــ او تر کله په غرو کې ؟

ــ تر هغو چې ظالمان د خلکو د غوښو له خوړلو او وینو له تویولو څخه لاس واخلي ، کلی د وروری ځای او جومات د عبادت ځای شي.

ــ زور زیاتی به هیڅکله د ملک شا سوار په قتلولو پای ته ونه رسېږي . په دې کار به د ظالمانو منګولې او غاښونه لا تېره شي او تا سې به فقط خپلې کورنۍ او خپلوان اورته واچوئ .

ــ هو موږ به هر څه اور ته واچوو ، تر څو کسات واخلو او د ظلم کور وسوځوو .

په خبرو خبرو کې هغوی بازار ته راورسېدل او یو له بل نه جلا شول .

مهر د ل دا سلم په مشوره د صیا دوز اوبا نو ، بز گرانو او د ده سلا او بنو پیژند گلوو ښوونکو ته د سین پر غاړه پخپله با غچه کې مېلمستیا کړې وه . د ملک یوسف باغچې په صیا د کې نوم درلود ، د ونو تر گورو سیورو لاندې د سین پر غاړه د ډبرو پراخه چوتره د سین په سپینو پستو شگو پوښل شوې او پې د پاسه د غوزا نو د گڼو څا نگو او پاڼو سیورى . پخوا چې د ملک یوسف د دبد بې زمانه وه دلته به د دوبې په مهال د اند راب سرکاري مشران را ټولېدل ، مېلې به یې کولې ، ټنګ ټکور به وو ، د ملکانو او خانانو د بلنو او مېلمستیاوو عذربه پکې کېد ه، د چوترې او چنا رونو د څنگلونو تر مینځ د ملک یوسف تر کلا پورې د میوه لرونکو ونو با غ غځېد لی ؤ . د چوترې سهیل ته یو ا وږ د بوره پټی پروت ؤ. په دې پټي کې به ملک یوسف گلان کرل خو اوس بې کښته پا تې شوی ا و په پولویې د نسترن ا و ځنځلو پخواني بوټي ببر شوي ا و وحشي شوي دي .

د با غ لویه چوتره په ټغرونو او غالیو فرش شوې وه . له ونو او بوټو څخه دغرنۍ هوا تا ند ه وږمه راغبر گېد له او د رابلل شویو له شوربگت سره یوځای ښادو زړونو ا و پلنو سینو ته ننوتله . د چلمانو په لو گیو او د نسوا رود قطیو د شیشو په پړ کېدو کې چا ینکې ا و د نقلو تا لۍ پر مېلمنو ویشل کېد لې .

نن د لومړي ځل لپاره د ملک یوسف په نامي باغچه کې د ا سې کسان چې ځای یې په ژرند و ، لوگجنو تورو دالانونو او تیارو کوټو کې و، را ټول شوي وو . دوی زیا تره د بېوزلو بزگرا نو زمن وو ا و په دا سې ځای کې د دوی را ټولېد ل عادي کار نه و . گوره څه پېښ شوي دي چې د قاسم او جبار مرتبه یې د ملک یوسف غالۍ ته و رسوله.

د کوز صیاد ملا خو دا خبره تصادفي نه وه کړې چې اوس د ملک یوسف رغولی او دروازه د کلي بې دسترخانه او بې دروازو بدمرغو ته ورپاتې شوې ده .

د مېلمنو تر مینځ د بنو او ده سلا د لیسې ښوونکو چې په برگو جیلکو کې بر ناست وو ، د کلیوالو بزگرانو پاملرنه ځان ته وراړولې وه .

بزگران ښوونکو ته ورنېږدې شول ، تر مینځ یې د پېژندگلوو لپاره خبرې او ټوکې ټکالي پیل شوې . قاسم په مهردل پسې د مېلمنو هرکلي ته ور ودانگل . جبار له جمعه خان ښوونکې سره په خبرو تود شو . او استاد حمید د مهردل په سلا د اسلم څنگ ته کېناست ، هغه اسلم ته وویل : له ډېرې مودې مې ستا نوم اوریدلی ، دي معلم جمعه ستا د مېړانې او خوږې مرکې په باب خبر کړې یم . نیت مې و چې زه به تا وینم او خبرې به درسره کوم لیکن دا به تر اوسه مقدوره نه وه . نن ستا په لیدو داسې خوشحال یم لکه ټول صیاد چې چا رابخشلی وي . په ما باندې مېړني خلک گران دي . زه غواړم له هغو کسانو سره چې د ظلم مقابله کولای شي دوست شم او له دوی سره د زړه تنهاکې اوبه کړم

ــ کور ودان حمید خانه . زه د دې کلي یو غریب او ځوربدلی سړی یم . له ما سره ډېره غټه ناروا شوې ده . له ما څخه د سیمې ملکانو کلی ، کور ، جایداد او ناموس لوټ کړي دي . زما سرنوشت یو د غمونو انبار دی ، زه غواړم هرچا ته د دې انبار دروازه پرانیزم لیکن نه پوهېږم چې اوربدونکي به زما د ترخه ژوند د غمجنې قصې د اوربدلو زغم لري که نه . ښایي دا به د ځپل شویو او ټکول شویو

خلکو عام خصوصیت وي چې خپل غمونه او رنځونه له نورو سره شریکوي .

ــ زه هم د دې راز سرګذ شتونو ، د همدې راز غمونو او رنځونو زوی یم ، ستا د غمونو ژبه زما د زړه ژبه ده ، زه ستا د قصې تږې یم ، مهرباني وکړه په ما باور ولره .

ــ څو کاله د مخه په همدې صیاد کې زما مور مړه شوه . او د هغې د غمجن مرګ په شپه له برو درو څخه سیلاو راغی او زما کوچنۍ کروند ه یې تر خړو او ډبرو لاندې کړه او ما بدمرغ چې تر دې غمجنې پېښې وړاندې کوزده کړې وه ، مجبورشوم د ناموس د خوندي کولو او د پولی پتې د بیا آبادولو په مقصد د غریبۍ لپاره فاریاب ته لاړ شم . دلته په کلي کې سړي خواره د برو درو له ظالمانو سره یو لاس شول ، زما نجل یې خرڅه کړه ، زما د کور کالي یې لوټ کړل او زما د ودانۍ لرګي او دروا زې یې په خپلو دهقانخانو او قشخانو کې ولګول او زما یې په غیاب کې د مرګ مجلا تېره کړه ، زه یې په مړو وشمېرلم ، زه یې یو وزری او بېوزله سړی وبللم او زما په عزت پورې یې وخندل .

اسلم د خپل ترخه ژوند او د جابرانو د جفا په هکله معلم حمید ته ډېرې خبرې وکړې . د اسلم ستونی وپړسېده . سترګو یې د غوسې او غضب سور والی راووړ او خبرې یې په خوله کې وچې شوې.

معلم حمید د اسلم په سترګو کې دنه ابلېدونکي انتقام برېښنااو د ژورې کرکې لمبه ولید ه ، هغه پوه شو چې اسلم له ملک شاسوار او د برې درې له خانانو سره خپله قصه آسانه پای ته نه رسوي . اسلم به خامخا د ملک په هستې اور ولګوي ، ځان او دغه نور زلمیان به هم د دې اور په لمبو کې

وسوځوي . حمید له ځان سره وسنجوله کله چې د صیاد د ځوانو بزگرانو تقدیر همدا دی ، نو بیا ولې د دې اور لمبه یواځې د یوه منفرد ملك کور او هستي ایره کړي؟ ولې دا اور پراخ نشي ، ولې ولسوال صاحب ، قاضي صاحب ، د پولیسو قوماندان او داسې نور ظالمان هم پکې ورونه چرموړي ؟ د حمید فکر د وسله وال پاڅون خواته لاړ . آیا د اندراب د نورو بزگرانو وحدت به له اسلم سره بسیا نشي؟ آیا اسلم به د ملك شا سواړپرځای د اوسني جابر دولت مقابلې ته چې د ټولو تېریو او زور زیاتي وسیله ده، ملا و نه تړي؟ کېدای شي دا کوچنۍ سوځوونکې سپرغۍ د باروتو انبار ته لار پیدا کړي . اوس عمده کړۍ، د تصمیم او عمل کړۍ د اسلم په لاس کې ده . دی باید د صیاد بزگران په دې پوه او قانع کړي چې له لنبتي څخه ووزي او پراخ دریاب ته ورگډ شي . لامبو خو هر لامبوزن وهلای شي لیکن پیاوړي لامبوزن د دریاب غېږې ته، د یاغي ځپو بستر ته ځان اچوي او لویه لامبو زده کوي . د ژونـــــد ټولې چـارې همداسې دي . هرپیل یو پای لري . سړی ما شوم وي اوروسته بیا پیاوړی او د خپل سرنوشت خاوند شي دا ما شوم هم باید لوی او پوخ شي ، هغه څوک چې د شخصي انتقام لپاره اور ته وردانگي او د یو جنایتکار او قاتل په نوم تباه کېږي ولې د تاریخ په لوی او روښانه واټ باندې د خلکو د دفاع او د ژوند د بقا لپاره مخامخ و نه جنگېږي ؟ که دغه دهقانان په انقلابي هدفونو معتقد شي او انقلابې مفکوره واخلي دا به د یو لوی هدف د سرته رسولو لپاره یو مهم گام وي .

استاد حمید چې لا پخوا غایبانه په اسلم پورې ډېر امیدونه تړلي وو د صیاد د بزگرانو په لیدلو او له اسلم سره په مخامخ آشنا کېدویې د غرور او د بری احساس کاوه او ډاډ یې حاصل شو چې له دې نغري څخه به خامخا د اور لمبې جگې شي . ده ته د صیاد د بزگرانو په وجود

کې د يوې نوې دنيا دروازه خلاصه شوه، د ده ذهن د بزگرانـــو دقيام خواته لاړ. وسله‌وال پاڅون به وشي او زوړ نظام به نسکور شي. ځمکې به وويشلې شي. بزگران او شپانه به د زوره‌ورو د استثمار له منگولو څخه آزاد شي، سواد او مکتب به د ټولو ولسونو لپاره عام وي. رشوت خواره او ښکيلاک گر به ورټل شي او ټولنه به له سياسي، اقتصادي او اخلاقي فسادونو څخه لمن ورټوله کړي.

استاد حميد د اسلم په باب د خپلو خيالونو په رنگين وا ټ کې پرمخ ته چې اسلم د خپلو خبرو په پای کې پوښتنه ځنې وکړه: معلم صاحب چوپ شوې، تا ته څنگه ښکاري آيا زه په حقه نه يم؟

ــ ته په حقه يې ليکن ...

اسلم استاد حميد ته خبره په خوله کې ورماته کړه: ليکن څه؟

ــ ليکن تا د يو کوچني هدف او شخصي مقصد لپاره زياته قرباني پر ځان منلې ده. زما مقصد دا دی چې په دې ټول صياد کې يوازينی مظلوم ته نه يې او دا يوازې د صياد خلک نه دي چې ظلم گالي. که سترگې پرانيزو په اندراب کې داسې مظلومان په زرگونو او په قطغن کې په لکونو او په افغانستان کې په کروړونو دي او دا ظلمونه همدا نن نه دي پيل شوي، دا د پېړيو را په ديخوا رواج شوي اودانسان په وينه او هډونو کې اخشل شويدي.

اسلم د دې خبرې له اوريدو سره له پلترۍ نه را په گونډو شو. د ململ سپينه لنگوټه يې له خپلو وروځو څخه پورته ټېل وهله او په ځير ځير يې استاد حميد ته وکتل. د ده د خبرې په بنسټ او اصلي هدف پسې وووت او له هغه نه يې پوښتنه وکړه: آيا الله جل جلاله د دې ظالمانو په دې بې رحمه چلند راضي دی؟

ــ نه هیڅکله ، خدای خو د عد ل ، برابري او انصاف هدایت کړیدی لیکن داسي کسان شته چې همدا ظلمونه او تادا خدایي برخه بولي . هغوی وایي غنا او فقر ، سواد او بېسوادي ، روغتیا او ناروغتیا دا گرد سره د سرنوشت برخه ده .

ــ په دې خبره ښه پوه نشوم استاده !

ــ د دې خبرې معنی دا ده ، داسې کسان شته چې وایي هر څه له اسلم سره شوي دي ، دغه یې په برخه لیک کې لیکل شوي دي او دا دخدای تعالی له جانبه دي . په دې کې ملک شاسوار او نور کسان کوم تقصیر نه لري .

اسلم یوه شېبه په چرت کې لاړ او بیا یې ناڅاپي سترگې وپرکېدې ، معلم حمید ته یې وویل : که چېرې د ا سلم لاس وچلېده او د ملک شاسوا ر په مرۍ یې د کسات چاړه تېره کړه خو دلته به هم بیا وویل شي چې اسلم مقصر نه دی ملک شاسوار ته په برخه لیک کې همدا سې لیکل شوي وو . په دې کې خو بیا هم د پوروړي او پوردار حساب یو شو !

ــ نه نه ا سلمه داسې نه ده ، که چېرې داسې وای خو د پټي یو سر او بل سر به یوه سطحه لرله او لرو بر به اوبه برا برې ویشل کېدې . لیکن داسې نه ده .

ــ څنگه ده نو ؟

ــ دلته بیا دمروج عدالت ، انصاف او شرعي حدودو خبره مینځ ته راځي ، د جاني او مجنی علیه ، د متعدي او متعدی علیه خبره را بر سېره کېږي ، د تول او اندازې لپاره تله او پیمانه نوې کېږي ، یعنی ملک شاسوار ته په یوه تله او تاسو اسلم ته ، قاسم ، جبار او نورو دهقانانو ته

بله تله ورتلل کېږي . هلته د خدای د قضا او قدر وجوب ستا د برائت او مجبوريت لپاره دليل نه شي کيدای ، دا بيا په قاضي پورې تړلې ده چې د کتاب کومه حاشيه درته گوري او د کوم تاويل په پېري دې تړي ، ليکن په تړلو دې خامخا تړي .

اسلم يوه شېبه تامل وکړ . لاس يې تندي ته يووړ، له ناست ځای څخه راولاړ شو . استاد حميد ته نېږدې راغی پوښتنه يې ځنې وکړه : معلم‌صاحب ستا له خبرو خو داسې معلومېږي چې زما رنگو کسانو لاسونه ازلي تړل شويدي . موږ د پور پتې او انتقام حق نه لرو . او ستاسې د خبرو مطابق موږ ته چې هر څه رسېږي له خپل تندي او بخت څخه رسېږي ، که داسې وي د دنيا ټولې سپکې او ورکې چې رارسېږي له تقدير څخه به‌يې بولو او له ظالمانو او سړي وژونکو څخه دې حتی گله هم نه کوو .

ــ دا خو د خيټورو او ظالمانو منطق دی ، ليکن د مظلومانو خبره بيا بله ده . د دنيا مظلومان عدالت غواړي ، هغوی وايي په دين کې دارا او نادار ، سور او سپين ، عرب او عجم فرق نه سره لري . ټول د ژوند او برابرو حقوقو خاوندان دي . مثلاً که ملک شاسوار تا مړ کړي په تا باندې قصاص کېږي .

ــ نو فرق چېرې دی ؟

ــ دا جواب ليږ سخت دی . معلم جمعه چې ښه باسواده او لوستی سړی هم دی لا د ظالم او مظلوم په وېښ نه پوهېږي . په دې خبرې باندې پوهېدل د ټولو رازونو کلي ده . که څوک په ټولنه کې يعنی دلته په دې خپل ولس کې د ظالم او مظلوم ، د نشتمن او شتمن او د حاکم او محکوم پوله پيدا نکړي او د مظلوميت په سببونو پوه نشي هغه خپل

دښمن نه شي پېژندلای . ډېر امکان شته دی چې داسې نا پوه کسان خپله ځواني او مېړانه بې ځایه ضایع کړي .

معلم جمعه د استاد حمید له خولې خپل نوم واورېد په موسکا له ځایه راولاړ شو او هغه ته یې د ټوکو په غاړه وویل : ښه وایه بیا دې زما څه غیبت شروع کړی دی ؟

استاد حمید په فکر کې ډوب لاړ ، یوه شېبه چوپ پاتې شو بیا یې معلم جمعه مخاطب کړ : ولې له موږ څخه لرې په تخیلي دنیا کې ژوند کوې . تا خو به‌تل ویل پاک انسانان او تکړه ملګري نشته . دا بزګران خو هم پاک دي او هم تکړه ، ته چا ته منتظر یې او څه راز ملګري غواړې ؟ اې بدمرغه لارورکې جمعه ! ته به هم په دې ورکه لار کې ورکېږي . داسې به ورکېږې چې هیڅ پل زن به ستا لوری و نه مومي . غمونه به دې دوستانو ته ډېر ورپاتې شي ، لیکن د عمل نتایج به دې ډېر کم وي ، زه غواړم چې داسې دې نه وي ، ستا آواز دې ټولو کلیو او کروندو ته ورسېږي او ته دې د ولسونو لپاره د یو سندرغاړي او ټوکمار دوست پر ځای یو واقعي لارښوونکی شې . ته دې د پارلماني نظام د یو مداح پر ځای د وسله‌والو پاڅونونو او ولسي پاڅون مبلغ شې او ته دې داسې هنرمن یې چې د هغه د ژوند واټ د ټوپک او دنبورې په غبرګو هنرونو باندې جوړ شوی وي .

ته خپل عشق ، خپله ځواني ، خپل ټول استعداد او ملکات ولس ته ور وبخشه . ته داسې مینه انتخاب کړه چې تا ډوب نکړي او تا له دغو غریبو لار ورکو خلکو څخه و نه پېري او جلا دې نکړي .

معلم جمعه نه غوښتل د ساده بزګرانو په وړاندې دا روښان فکره بحثونه چې هغوی ته د پوهېدلو وړ نه وو ، له استاد حمید سره پر مخ

بوزي نو ځکه يې د هغه د خبرو لړۍ داسې ورلنډه کړه : استاده ! بيا په څه چرت کې لاړې ، ما غوښتل وپوښتم دا زموږ يار اسلم دې خوښ شو که نه ؟ دا خو هم هغه اسلم دی چې د صياد له زمري څخه يې گيدړ جوړ کړ ، ته خو نن سم گپ ورسره ولگوه . دا دهمغو انقلابي دهقانانو يو تن دی چې ته همېش د هغوی د پيداکولو او روزلو په باره کې خبرې کوې .جمعه همدلته خپله لهجه طنز ته واړوله ، دوی هماغه د پاڅون کسان دي چې تا خپل ټول عمر د هغوی په لټه کې تېر کړ .

ــ جمعه جانه کور دې ودان ، زوی دې لوی .که دغه دهقانان د پاڅون نه شول نو د پارلماني نظام د عدالت جنډه خو به لوړه کاندي . څنگه ؟ توره نکتايي او سپين کالرونه خو به په غاړه کړي او ستاسي گلالي حکومت او سپين پاڅون ته خو به لاس پورته کړي .

معلم جمعه موسکی شو . وې ويل : استاده نن ډېر بحث نه درسره کوم ، زموږ د نظرياتو سم والي او ناسم‌والي ته به تاريخ ځواب ورکړي . زه د انسان د وينو تويولو پلوي نه يم . کله چې خلک وکولای شي د دولت له لاس وهنې پرته خپل نمايندگان وټاکي او د پارلمان له لارې خپل د زړه حکومت راولي . د خلکو دښمنان ، ظالمان ، رشوت خواره ، بې کفايته او ناپوه کسان په سوله ايزو دموکراتيکو لارو د واک له مقامونو څخه لېرې کړي ، د دولتي سيستم چارې تر کنترول لاندې راولي ، په اقتصادي سياست او اجتماعي چاروکې د خلکو برخه اخيستنه بسيا کړي . بيا نو جنگ جگړې او وسله وال پاڅون څه ضرورت دی ؟ موږ خو ليوان نه يو چې بې موجبه د ځيرلو او وينې تويولو لار غوره کړو .

د معلم جمعه بحث له استاد حميد سره اوږد شو ، آوازونه لوړ او

د خبرو طرز جدي شو ، د مېلمنو پاملرنه يې ورجلب کړه ، ټول پر معلمانو باندې راټول شول .

استاد حميد په دې کې معلم جمعه ته وويل : ته د اسلم په مظلوميت خبر يې ؟

ــ هو !

ــ مهرباني وکړه موږ پوه کړه چې د دغه اسلم د مظلوميت جبيره به څنگه ستا د مطروحه پارلماني نظرياتو له لارې وشي ؟

ــ هغه پارلمان چې هلته د حکومت له مداخلې پرته انتخابات وشي او په دې انتخاباتو کې وړ کسان وټاکل شي ، د نن خبره نه ده . هغه پارلمان کوم چې زه يې پې معتقد يم په داسې ټولنه کې لکه دا نن چې موجوده ده تحقق نشي پيدا کولای .

ــ ډېره ښه ، نو کله به تحقق پيدا کړي . مثلاً څو مياشتې يا څو کلونه او پېړۍ وروسته ؟

ــ زه دغه وخت نشم ټاکلای .

ــ د اټکل په توگه مهرباني وکړه .

جمعه وارخطا شو بې ارادې يې وويل : ښايې شل کاله ، پنځوس کاله او تر دې کم او زيات کلونه .

ــ ډېر ښه ، تر پنځوسو کالو پورې به خلك څه کوي ، خپل مسائل به څرنگه حل کوي . دغه اسلم به څه کوي . هغه ستاسې د کلي خيرمحمد چې زوی يې د اوبو په لښتي باندې ووژل شو ، هغه به څه کوي . دا ټول خلك چې تالا کېږي ، وژل کېږي او تر استبداد لاندې چيغې وهي دا به څه کوي ؟ هغه د ده سلا ( سکينه ) د مرحوم عزيز ښځه به څه کـــوي ؟ استاد حميد په دې کې له معــلم جمعه څخه

اسلم ته مخ راواړاوه هغه یې مخاطب کړ ، او وې ویل : د عزیز د مېرمنې قصه هم د اورېدو ده . هغه په تانده ځوانۍ کې کونډه شوه . هغې ته له خپل مېړه څخه ډېرجایداد او یو زوی ورپاتې شول . د ښایست او جایداد په وجه ډېرو کسانو له هغې نه د بیا کوژدې غوښتنه وکړه ، لیکن هغې د خپل زوی د پالنې په خاطر هر چا ته د نفې ځواب ورکړ ، له عزیز څخه یو احمق ورور ، چې سمندر نومېږي پاتې دی . ده د عزیز له مرګ څخه وروسته له کونډې وربنداري څخه د دواده هیله وکړه . لیکن هغې انکار وکړ . دی راولګیده د قاسان د ملکانو په ملاتړ د خپل وراره وصي شو . له وصایت څخه یوکال وروسته یې د ملا ګلک په واسطه دبرې درې له خانانو سره په مشوره یو لک روپۍ د ارزنګان ملک امرالله ته چې قرآن خور سړی دی ورکړې . هغه د مرحوم عزیز په ماشوم زوی باندې د خپل ورور د قتل دعوی چې د باجګاه په غلا کې مړ شوی و، وکړه . د ماشوم له لوري سمندر د عزیز ورور یعنی د ماشوم وصي ورته وکیل شو . وکیل صاحب د خپل وراره له لوري په درې واړو محکموکې د قتل دعوی عمدأ امرالله ته بایلوده او ماشوم چې بلوغ یې شرعأ د بلهې خورو له لوري تسجیل شوی و، په قصاص محکوم شو . قاضیانو ، څارنوالانو او په اندراب کې خو تقریبأ ټولو سرکاري واکدارانو خپلې برخې پکې واخیستې . له اورېدو د درې خانانو پنځوس زره افغانۍ او ګلک پنځویشت زره افغانۍ جیب ته واچولې . د عزیز زوی قصاص شو . جایداد یې د رشوت خورو د سهم تر ادا کولو وروسته خودبخود د سمندر کاکا خېټې ته لاړ .

سکینه هم په همدې سرنوشت سمندر ته نکـــاح شوه . آیا موږ

د عزیز ښځې ته چې اجباراً واده شوې او زوی یې قتل شوی دی ویلای شو چې ته ودرېږه پنځوس کاله وروسته د معلم صاحب جمعه پارلمان واګې اخلي او دموکراسي نظام راولي، هله به ستا بازخواست وشي ؟

استاد حمید چې په احساساتو کې تود شوی و ، مخ یې له اسلم څخه معلم جمعه ته ورواړاوه او په برندو برندو کتو یې هغه ته وویل: ګوره معلم صاحب د یو دوست او ستا د یوه خواخوږي په توګه غوښتنه کوم چې د خیال له لمر سپوږمۍ څخه لیرې دې خاورینې غمځپلې ځمکې ته راکوز شه او له هغو خاکي خلکو سره چې ستا مرستې او ملاتړ ته محتاج دي نیږدې شه . زما په فکر ستا اوسني خیالات او د ژوند غوښتنه سره لرې دي . موږ باید د ژوند غوښتنو ته ځواب پیدا کړو ، نه د خپلو سیاسي تخیلاتو او هوسونو تقاضاوو ته ، د مثال په توګه دغه اسلم او دا نور بزګران چې دلته راټول شوي دي او هغه زده کوونکي چې د بنو په ښوونځي کې له تا څخه د تاریخ زده کړه کوي ، د ژوند د مسایلو په باب پوښتنې لري ، دوی پخپل ورځني ژوند کې په ستونځو اخته دي . دوی باید د خپلو پوښتنو او شکونو په باره کې ځواب ترلاسه کړي او قناعت ته ورسېږي . وړمه ورځ د مرزا قمرالدین زوی چې د بنو د لیسې په لسم ټولګي کې یو ممتاز شاګرد دی، د ګل شاه په سماوار کې له څارنوال سره د اجتماعي بدلونونو د ضرورت په باره کې بحث کړی و . هغه هم د استاد پارلماني جنت په باره کې ګوړې ماتولې . کله چې ما ته دا قصه وشوه زه سمدستي پوه شوم چې دا د معلم جمعه سیاسي نظریات دي چې د دې تنکیو او مستعدو ځوانانو ماغزه یې تخدیر کړي دي .

معلم صاحب ! ستا نظریات د افـــلاتون د فاضله مدینې نظریاتو ته

ورته دي . هغه خو لا د افلاتون په وخت کې هم غلط ثابت شوي‌وو . لیکن ته تر هغه دونیم زره کاله وروسته دغه باطل مبطل افکار هغه هم په ډېره ناقصه او عامیانه توګه ژویې او نا روا شخوند پې وهې . د بزګرو لپاره څه فرق کوي چې د زور ورو جاګیردارو پارلمان ته څوک ځي . د پارلمانتریستانو ښه او بد اخلاق د خلکوپه اساسي ستونزو باندې څه اثر لري ؟ دا وړ پارلمانونه خو د لیوانو تر مینځ د پسونو د ویشلو کار پر مخ بیایي . دا پارلمانونه خو فیصله کوي چې د ښکېلاک ګرو کومه طبقه ، کوم قشر او کوم نماینده ګان دې په روانه دوره کې د خلکو مادي او معنوي هستي تالا کړي او بیا تاسې لا بل تیسس هم راویوست چې دې پارلمان ته باید پنځوس کاله سترګې په لار پاتې شو ، او زموږ په نسل کې لا داسې څوک نشته چې پنځوس کاله وروسته دې ژوندی وي .

معلم جمعه چې د صیاد د ځوانانو په مېلمستیا کې له سخت موقعیت سره مخامخ شوی او د خپل میل خلاف له استاد حمید سره بحث او شخړې ته مجبور شوی و ، له ځان سره یې وویل : رائحه چې نه دي پرېږدي او نظریات دې په ناروا طریقه تحریفوي او ملنډې پرې وهي . سم بحث ورسره وکړه او خپل عقاید پخپله طریقه او صادقانه توګه بیان کړه . دسمال یې له جیبه راویوست د مخ خولې یې پاکې کړې او په مودبه غاړه او له موسکا ډکو سترګو یې استاد حمید مخاطب کړ :استاده ما کله ویلي دي چې اسلم دې پنځوس کاله د خپل حق د حصول لپاره منتظر پاتي شي . زه کله نورو مظلومانو ته وایم چې تاسي خپل حقوق مه غواړئ .که زه دوی د خپـلو حقوقو له غوښتلو منع هم کړم دوی هغه غواړي او خامخـــا یې باید وغواړي . په روان ژوند

کې ظالمان او مظلومان دواړه شته او له زرگونو کلونو را په دېخوا همدا لړۍ روانه ده . ښايي ليوان او وري به يو ځای پيدا شوي وي . د ظالم او مظلوم ، حق او نا حق ، رڼا او تيارې د مقابلې او مبارزې بحث خو ډېر پخوانی دی او د زرگونو کلونو تاريخ لري . تل مظلومانو مبارزه کړيده او کوي به يې ، ليکن د اسلم او د ده د مخالفانو شخړه ورځنۍ پېښه ده ، داسې پېښه چې هره ورځ د خلکو تر مينځ د هغې په څير زرگونه پېښېږي . دا خو د ورځې روانی خبرې دي . ليکن کله چې دوطن په باره کې خبرې کېږي او د راتلونکي ټولنې د جوړولو ستراتيژي مطرح کېږي ، هلته بايد د اسلم ورور او يا زما ستا د پرابلمونو په چوکاټ کې بحث محدود نشي . بايد بحث د تاريخي تطور پر قانوني فطرت باندې وشي او د اجتماعي مناسباتو جرړې وڅېړل شي . دا حقيقت وڅېړل شي چې ولې په ټولنه کې ظالم او مظلوم ، شتمن او نشتمن ، حاکم او محکوم را پيدا شوي دي ؟ د دې اجتماعی توپيرونو سرچينه چېرې ده ؟ په څه طريقه بايد له اجتماعي ناوړتياوو سره چې انسان يې ناکرار کړيدی مبارزه وشي ؟

زما او ستا اختلاف دې ټپوسونو ته د ځواب ورکولو څخه را پيدا شوی دی . يعنی زه او ته د موجودو اجتماعي مناسباتو د تحليل او د هغوی د سرچينو او فعل او انفعال په باره کې اختلاف لرو . موږ په يوه تاريخي مرحله کې د اجتماعي ناشونو او له هغوی سره د مبارزې په ستراتيژۍ او تاکتيکونو باندې سره مخالف يو . خو تاسو له موقعيت نه ناوړه گټه اوچتوئ . د علمي دوکتورينونو اختلاف د اسلم قصې ته راغونډوي او په دې توگه غواړئ خپله فقيره فلسفه او جنجالي سياست پر ځورېدلو بزگرانو ومنئ . ليکن ستر بدلونونه په گردې ټولنې پورې اړه

لري او د لسو شلو کلونو په دوران کې نه راتولېږي او بیا انسان پخپله یو مجبور شی دی ، نشي کولای چې خپل ذهن او فرمان پر تاریخ باندې وروتپي او د اجتماعي بدلونونو زمان د خپلې ځانګړې غوښتنې تابع وګرزوي .

تاسې زما سیاسي عقاید تحریف کړل . په بحث کې د مقابل لوري له اخلاقي رعایت څخه ګټه اخیستل اخلاقي کار نه دی . تا زما افکار د خلکو له غوښتنو څخه لرې او پردي وبلل . اجازه راکړئ چې زه له تاسو څخه وپوښتم په داسې ټولنه کې چې هلته د سوله ایزې دموکراسۍ اصول او پارلماني انتخابات د تطبیق وړ نه وي او په پنځوسو کلونو کې لا هم نشو وررسېدای ، هلته به د بې طبقې ټولنې جوړول او ټولو خلکو ته د دوی د اړتیا په اندازه بسیاینه څو کلونه ونیسي ؟ د داسې ټولنې جوړول چې له فقر او اجتماعي ظلم نه خلاصه وي او د دولت د موسسې ضرورت یکې له مینځه لاړ شي ، څو پېړیو ته اړتیا لري ؟ آیا دغه د ځمکې مظلوم بنده ګان او له هغې جملې نه همدا کوټل شوی اسلم کولای شي چې د هغه طلایي دوران راتګ ته سترګې په لار پاتې شي ؟ یوازې په سرو او تودو خبرو ټولنه نه بدلېږي . دا تشې باتې دي چې ته یې په ډېر لوړ قیمت خرڅوې . سعدی ستر فارسی ژبی شاعر پخپل ګلستان کې یوه داسې قصه لری چې زمونږ.له دې بحث سره سر خوري . په قصه کې ویل کېږي چې یو سړي استنجا وهله او په هغې کې یې د استنشاق دعا ویله « الهم ارحنا برائحة الجنتة » یعنی خدایه ما ته د جنت بوی راورسوې . سعدی چې د یوه سوري دعا د بل سوري په حق کې واوریده ، سمدلاسه یې هغه سړي ته آواز وکړ او وې ویل : « جان بابا خــوب ورد آورده ای ـ لیک سوراخ دعا ګم کرده

ای . » یعنی دعا ښه دعا ده ، خو د هغې سوری دې ورک کړیدی .
ته کټې مټې لکه د سعدي اسامي خپله دعا په غلط سوري کې کاروي ، ته غواړې د اسلم مسأله په اندراب او بیا افغانستان کې د پراخو اجتماعي تناقضونو د حل او فصل لپاره او یا ستاسو په اصطلاح د یوې تاریخي پوړۍ نه بلې ته د ورتېرېدو په خاطر استعمال کړې . که سوسیالیزم هم دا وي چې ته یې بیانوې ، دا له یوې فلسفي گمراهي څخه پرته بل څه نه ده . که ته غواړې چې واقعاً له اسلم سره مرسته وکړې بیا نو لار دغه نه ده چې ته پې روان یې ،د دې مرستې لارې معلومې دي . لومړۍ لاره دا ده چې له ملک شاسوار سره د هغه روغه وکړې ، پور او بد ورته واخلې . که دا دې په وس نه وي پوره ، نو بیا د هغه د دعوې وکیل شه او عرض یې یو ځای ته ورسوه اوکه دا یو هم نه وي درباندې پوره ، د ده د مظلومیت یو صادق شاهد او ملاتړ خو اوسه . تردې پور ته موږ او تاسې ته حق نشته چې دغه پاک اوگلالي بزگران شرارت او ماجراوو ته ورټېل وهو او له ښکرورو غویانو سره یې په نابرابره مقابله اخته کړو . تاسو لطفأ خپل ذهن پر تاریخ باندې مه تحمیلوئ .

معلم حمید چې تل یې د معلم جمعه له رعایت او احترام څخه په بحثونو کې گټه اخیسی وه ، نن په نا منتظره توگه د هغه له مقابلي او پیاوړي استدلال سره مخامخ شو .دې مقاومت هغه د زبردستۍ له همېشني احساس او جوش څخه راوغورځاوه او د خپل عادت په خلاف یې د بحث د لنډولو ته مایل کړ . ده همدې نیت د معلم جمعه په خبروکې ورننووت وې ویل : اوږدو خبرو ته څه حاجت ، همدلته د اندراب په شرایطوکې به وگورو چې کومه لاره لنډه د فهم وړ او عملي ده . د مثال په توگه اسلم

غواړي په اندراب کې له ظالمانو سره د مبارزې لپاره له موږ څخه مشوره وغواړي ، موږ د دغه روان بحث پر اساس دوه نظریې ده ته وړاندې کوو .یو دا چې اسلم دې پنځوس کاله انتظار وباسي ، تر څو پارلماني عدالت په وطن کې تامین شي او دی خپل حق ته ورسوي . دوهم دا چې اسلم دې ټول بزگران چې هره ورځ برالا ظلم ورسره کېږي متحد کړي او دوی ته دې د همدې اندراب په عملي ژوندکې د ظالم او مظلوم پوله وروښیي او د ټولو مظلومانو په لړ کې دې خپل حق هم وغواړي .

ـ نه استاد حمیده ! بربنډه خبره دې ونکړه . دا نو روښانه نا ځواني ده . ولې داسې نه وایي چې اسلم او د ده ملگري دې د ملک شاسوار د مقابلې پر ځای د دولت د ټول نظام قهرجنې مقابلې ته راپاڅېږي او واگي دې د تا گوند ته وسپاري . او همدې ته وایي واقعي گمراهي او عوام غولونه . قاسم چې هیڅ یې سر د معلمانو په بحث خلاص نشو ، له ځایه راپاڅېد ، معلم جمعه یې تر لاس ونیو ، له ځایه یې پاڅاوه ، دنبوره یې په لاس ورکړه او په لوړه خندا کې یې ورته وویل : د ښوونځي خبرې بیا په ښوونځي کې سره وکړئ ، نن د مېلې ورځ ده مېله به کوو . نیسه د تورو سترگو سندره وبوله او دا نازنین ځوانان خوشحاله کړه . استاد حمید راپاڅېد د باندې و و وت او جمعه کرار کرار د دنبورې تارونه او غوږونه وازمویل او بیا یې سندره پیل کړه :

آهو بره ی سفید خود گم کردم
روی سوی ولایتای مردم کردم
مردم میگویند ای بچه دیوانه شده
دیوانه نه یم یار خوده گم کردم

روىت گله میماند اگر آب تیی
زلفت زره میماند اگر تاب تیی
یک بوسه اگر برمن غمناک تیی
گویا که هزار تشنه را آب تیی

ای کرته سفید، سفید نپوشی چه شود
ما رهگذریم ، روته نپوشی چه شود
ما رهگذریم براه خود میگـــــذریم
از رهگــذران روته نپوشی چه شود

دختر ــ دختر تو داغ کردی مارا
صد برگ درون باغ کردی مارا
ما برف سفید بودیم در کوه بلند
آفتــاو شدی و آو کـردی مارا

د اوړي تود لمر د اندراب کروندو ته خپل تاوده تنابونه راغځولي وو . د کښتونو او باغونو تر مینځ په کږو وږو لارو باندې د سړیو او ښارویو اوږده کتارونه له لر او بر څخه د بنو بازار ته رهي وو . مهردل په مست مشکي آس سپور له نورو سپرو سره بازار ته راننووت . په سرای کې د اسونو له تړلو وروسته له یارانو سره یو ځای د بنو مرکزي او تر ټولو ستر سموار ته راغی . په اندراب کې د بازار ورځې د مالونو د مبادلې او سوداګرۍ څخه پورته د زلمیانو لپاره د ساتیرۍ ، مېلو او تفریح ورځې هم وي ، پدې مهال د بېلا بېلو سیمو زلمیان او شوقیان ملاقات سره کوي . هلته د بزکشۍ مقابلې او د زرکانو د جنګولو لوبې

جوړې وي . پهلوانان غېږې سره نيسي او محلي سندرغاړي د کليو او کروندو ستومانه زلميانو ته سندرې بولي .

مهردل سموار ته له راننوتو سره سم سموار چې ته په لوړ غږ وويل : استاد ميراحمده ، نن ټولې چاينکيانې موږ ته وساته ، د پېسو حساب دې پر ما دی . ټول انډيوالان د وزلوبې لپاره دلته رارسېږي ، زموږ شمير به يات شي او وزلوبان خو خواړه هم نام خدا ډېر خوري . مهردل ورپسې آدينه ته مخ ورواړاوه او په داسې حال کې چې د سماوار په ديوال راځوړندې دنبورې ته يې په لاس اشاره کوله وې ويل : آدينه جانه ته لا ورته ګورې ، دروايې خله او زموږ ستړو زړونو ته دمه ورکړه .

آدينه په برېتو کې موسکی شو . له ځايه وخوځېد ، په صدفو او ځونډيو جړاو شوې ، ښکلې دنبوره يې راواخيسته ، په غوږويې ګوتې ورووهلې ، سورېې کړه او بيا يې له مهـــردل څخه پوښتنه وکړه : کومه نغمه وغږوم او څه سندره وبولم ؟

ــ غرنۍ وطني چاربيتې وبوله ، هر هغه څه وبوله چې زموږ له سويو زړونو څخه غمونه کم کړي . زموږ په سينو کې عشقونه راژوندي کړي او موږ ته د ښايسته پېغلو د وصال او وفا په باره کې تسلي راکړي .

د مهردل د تائيد لپاره ټولو په لوړ آواز وويل : هو هو د پېغلو په باره کې يې ووايه ، ووايه ، وې‌وايه شير بچيه !

آدينه د کوزصياد د کلي د يو ځمکه‌وال بزګر زوی و . له ښکار ، د سندرو له مجلسونو او وزلوبې سره يې مينه وه او پخپل طبيعت کې يو مينه‌ناک زلمی و ، د کلي د يوې نجلۍ سره د مينې له کبله يې

ښوونځی د شپږم ټولګي په نیمایي کې پرېښود . مینه یې هم سرته ونه رسېده او نجلۍ د ملک شاسوار په ریبارۍ بل چا ته واده شوه . صیاد ته د اسلم راتګ په ده کې له ملک شاسوار څخه د کسات اخیستلو هیله پیاوړې کړه . که څه هم په ظاهر کې د قاسم غوندې تر خولې او لاس تېر سړی نه ؤ لیکن په زړه کې د ملک شاسوار په دښمنۍ کې تر هر چا ډېر مصمم و . آدینه د دنبورې په تارونو ګوتې وخوځولې . هغه یې غږېدو او ژړېدو ته برابره کړه . او ورسره سم یې مخ مهردل ته ورواړاوه او وې ویل : ستا په غوښتنه د عشق په باره کې سندرې بولم خو زموږ مینه د ببلتون په کوڅه تېره شوې ده . ځکه به د مینې او ببلتون په باره کې غبرګې سندرې وبولم . هغه له پرانیستې کړکۍ څخه سترګې د لوړو غرونو پر اوچتو پرښو خښې کړې او د دنبورې د تارونو په فریاد کې یې د بزګرانو او شپنود مینې سندرې پیل کړې :

جـــانانه قلندرت شدم یادم کن
خاکستر کوچه هات شدم یادم کن
گر زنـــده بودم باز به سلامت میآیم
گرمرده بودم دست به دعا یادم کن

در کوچه ی تنگ سر دچار تو شدم
عاشق به دو چشم پرخمار تو شدم
عاشق نبـــودم تو عـاشقانم کردی
زنجیـــر به زلف تابعدار تو شدم

سبزینه زنک مرا بخود یار بگیر
سوغـــات مر از پس دیوار بگیر
گر شب که مرا جای دیگر میبردن
تا آمـــــدنم خودته بیدار بگیر

در شهر شمامه بینوا میـــــگردم
کچکول بدست مثل گدا میگردم
مردم میگویند چرا گدا میگردی
بیمار عشقم پشت دوا میــگردم

سبزینه زنک من به کجایت بمرم
دم نو ککک چادر کشالت بمـــرم
دم نو ککک چادر کشالت کفنـــم
راستی ته بگو من به کجایت بمرم

آدینه لا خپله سندره پای ته نه وه رسولې چې گلك په مخامخ واټ کې څرگند شو او سماوار ته ننېږدې د درزي په دکان کېناست .

آدینه چې د هیجان او شور اعتلا ته رسیدلی و ناڅاپي یې گوتې د دنبورې له تارونوڅخه اوچتې کړې او سندره یې بس کړه . مهردل وارد واره پې غږ کړل : ولې دې بس کړه . ځوانیمرگ‌دې کړو کور خرابه !

آدینه د درزي دکان ته وکتل ، موسکی شو او وې ویل : په گاونډي دکان کې شیطان کېناست . سندره او ساز پاك شیان دي

د شیطان په اورېدو جوته کېږي.

.ــ گلک ښيي ، ځنگه ؟

ــ شیطان خو ښکر نه لري . همدا کسان چې په مینه او حقیقت باندې ایمان نه لري ، په ولس کې د فساد او دښمنۍ زړي کرې او مینان سره جلا کوي ، رښتوني شیطانان دي . آدینه لا خپلې خبرې پای ته نه وې رسولې چې د درزي شاگرد مهردل ته ودرېده او وې ویل : ملا گل‌رسول زموږ پر دکان ناست دی او تا بولي . مهردل انډیوالانو ته مخ ور واړاوه او د درزي دکان ته یې د تگ اجازه وغوښته .

د گلک سترگې چې ځنگه په مهردل ولگېدې د دکان له تخته ځخه یې په لوځو پښو د ده هرکلي ته راټوپ کړل . غېږ یې ورته خلاصه کړه او ټینگ یې په مټو کې ونیو : پلار دې خدای وبخشه په ټول قطغن زمین کې یې جوړه نه وه . زه خو د هغه په نمک رالوی شوی او گل رسول شوې یم . زه په اندراب کې هغه د پگړۍ او خبرې خاوند کړم . ما وې زه به ټول عمر د هغه د خاندا ن خدمت کوم ، خو دا به زما بد شامت وو چې تا مخ راځخه واړاوه او زه دې د ملک یوسف مرحوم له درگاه ځخه بې برخې کړم . خو اوس مې دا نگیرلې ده چې که مې منې او که مې نه منې زه ځان د تاسې لمنې ته دراچوم .

د تورې چرگې د ملا ژبه لکه دوه سره اره د غوړ مالۍ او ثنا او صفت په ژدوولو داسې توده شوه چې مهردل ته یې د ځواب او کورودانۍ موقع هم ورنکړه . د هغه سر ، غوږونه ، سترگې ، مخ او اوربوزیې ځو ځو وارې مچ کړل . گلک د کلي او کور له پوښتنې ځخه ورو ورو اصلي مطلب ته راغی او مهردل ته یې وریاده کړه چې ملک شاسوار گیله‌من شوی دی او د هغه خپه کول مناسب کار نه دی .

باید د خپګان موجبه یې وپوښتل شي او تسلي یې وشي . مهردل ګلک ته د ده د زړه سوي او خیر غوښتنې له کبله کورودانی ووایه او ډاډیې ورکړ چې د ملک شاسوار شک او شبهه به د ځان په بارکې لري کړي . هغه چې د ملک شاسوار او اسلم تر مینځ د ګلک په لوبو پوه و ، په ډېره وښیارئ یې د ګلک زړه په ځان سپین کړ . هغه ګلک ته وویل چې که ملک شاسوار له اسلم سره زما د نېږدېوالي له کبله پرما باندې بدګمان وي ، په حقه نه دی . دا ځکه چې اسلم خو اوس له زهرو ډک شوی دی . علاج یې د هیچا سره نشته . زه که له هغه سره ګرځم یو سبب یې دا دی چې د ملک شاسوار سره یې له ټکر کېدلو څخه منع کوم او ملک خو زما پلار ته د وروری لاس ورکړی و . زه هغه ته د خپل تره په سترګه ګورم زما ګیله خو ملا صاحب له تا نه کېږي چې دا څنګه د تا په ژوند کې ملک شاسوار زما په دوستئ او همدردئ باندې شکمن شوی دی . دا خو د تا کار دې چې هغه دې پوه کړی وای . په خبرو خبروکې پر مهردل باندې د ګلک بدګماني له مینځه لاړه . هغه وهڅاوه چې د ملک شاسوار مشره لور وغواړي او له هغه سره د خپلوي پیوند پیدا کړي . مهردل ګلک ته په ځواب کې وویل : که زه له ملک شاسوار سره خپلوي وکړم ، اسلم او د هغه ملګري به له ما څخه مخ واړوي او له ملک سره به د حساب پاکولو میدان ته راووزي . لومړی باید د اسلم لاسونه د ملک شاسوار له ګریوان څخه وایستل شي او بیا په نورو معاملو باندې مشوره وشي .

ګلک د مهردل خبروته په چرت کې لاړ . مرغوزي نسوار یې په پزه کړل . وپرنجېده او له پلتری څخه د زنګنو په سر کېناست او مهردل یې مخاطب کړ : مهردله ! دوه هنــدوانې په یو لاس کې نه نیول

کېږي . په اسلم او ملک کې باید یو انتخاب شي . هغه هم باید ملک انتخاب شي . له تا سره ورې نه ده چې د ملک یوسف غولی او دروازه د صیاد په بې دسترخا نه او بې دروازې بدمرغو کسانو باندې ناولې کړې . ته د یو عزت‌من او مشهور ملک زوی یې . د لوی کور سړی بلل کېږي ، له تا سره مناسب نه دي چې له داسې کسانو سره یارانه واچوې چې د پلار دستر خان او دروازه یې نه ده لیدلې . ته‌به له دوی سره لکه ورې سپک او بې پته شې . بې لمنې به شې . نوم به دې بد شي او د پلار ټول دوستان به مخ درڅخه واړوي . اسلم څوک دی چې د ملک شاسوار مقابله وکړي . همدا نن له کوټوال سره ناست وم هغه ویل له ولایت څخه په اسلم پسې یوه اطلاع راغلې ده . هغه نن سبا نیول کېږي . ملک خو د لویې سینې څښتن دي ، صبر ورته کوي او پوهېږي چې دا اسلم او د ده لچکان قدرت نلري . پرېږدي یې چې نس یې لکه د لاندی پسه په خپلو کولمو وګنډل شي . یعنی ( سر بد به بلای بد ) .

ــ نه نه ملا صاحب داسې نه ده لکه چې ته وایي . اسلم نه کمزور او نه بې عقله دی ، هغه پیاوړی دی او دوهم دا چې وزر یې آزاد دی ، کور او کهول نشته پسې ، دریم دا چې هغه بې د خپل پور له اخیستلو څخه نشي کولای په صیاد کې په لوړ سر ژوند وکړي . نو که انصاف ورسره و نه شي هغه به لېونتوب ته لاس واچوي او هلته بیا ما رنګو او تا رنګو کسان له ملک سره هیڅ مرسته نشي کولای .

ــ رائه چې یو څه سپین سره وغږېږو . ملک د دغې ولسوالۍ ګرد مامورین په پیسو رانیولي دي ، دام او کړی ګرد سره برابر دي ، قاضي ، ولسوال ، کوټوال او د محبس‌تر قوماندانه پورې په سرو زرو

تلل شوي دي . د اسلم او د ده د داړه مارانو کار خلاص دی . زه د همدې لپاره ستا پلو راغلم چې په حقیقت دې پوه کړم او د دې سریښتوله ډنډ څخه دې راوباسم . خدای شته ځارنوال صاحب هم چې ستا دوست دی ما ته یې مخ راواړاوه چې تا له دې کسانو څخه رالرې کړم ...

مهردل د ګلک خبره په مینځ کې غوټه ورپرېکړه وې ویل : ملک شاسوار څه اړتیا لري چې ټول دولتي ماموران په زرو تلي . ولې په دې زرو د اسلم پور نه پرېکوي چې هم یې سر بچ شي او هم خدای ترې راضي شي ...

له دې خبرې سره د تورې چرګې د ملا سپوږمې ورپېدې ، د پزې دسمال یې راویوست په بریتو باندې یې د پزې د نسوارو اوبه پاکې کړې . غوښتل یې څه ووایي خو ناڅاپي د دکان دروازه خلاصه شوه او قاسم د بزکشۍ په جامو او موزوکې مخامخ مهردل ته ودریده او بې مقدمې یې په حاکمانه غاړه وویل : راځه چې ځو ، سخوندر حلال شویدی او د قاسان ، ده سلا او درې سپاره د بزکشۍ میدان ته وتلي دي .

ګلک د قاسم په خبرو کې ورولوېده : تاسې لږ صبر وکړئ زموږ خبرې لا خلاصې ندي .

قاسم چې د وزلوبې قمچینه په لاس کې اړوله رااړوله د غوسې په غاړه ګلک ته وویل : کار په خبرو نه خلاصېږي ، کار په توره او ټوپک خلاصېږي او په دې خبره پسې ببرته و ووت .

ګلک تندی تریو کړ او په شونډو کې یې لاحول ولا تکرار کړه . مهردل د هغه د دلاسایني لپاره وویل : ملا صاحب مه خپه کېږه هلکان دي او د ځوانۍ او ناپوهۍ وخت یې دی . او ورسره له ځایه راجګ شو

او بې خدای پاماني په تلوار په قاسم پسې راووت .

د وزلوبانو لومړنۍ ډلې لوبه پیل کړې وه . نندارچیان جوپه جوپه د میدان د شاو خوا محفوظو ځایونو ته راټولېدل . د سپرو هلې ځلې شېبه په شېبه پسې تودېدلې او آسونو لکه زخمي لیوان یو پر بل خولې لګولې ششنېدل او د ورغومي شاو خوا پورته پورته په غبرګو الوتل . د سپرو ځپې د میدان په لوړو ژوروکې لکه د دریاب موړې او موجونه یو پر بل وراوښتې او د سپرو او آسونو قدرت یې آزمویه ، هوسا چاپ اندازان پر له پسې د کلیو او بانډو په لارو بنو ته رسېدل او د وزلوبې دایره یې پسې پراخوله . سرکاري ماموران ، د سیمې ار بابان او سپین ږیري د سترو چنارانو تر سیورې لاندې د یوې چوترې د پاسه چې په ټغرونو او توشکونو فرش شوې وه ، راټول شوي وو . نندارچیانو دآسونو د یرغلونو ترلام لاندې ځو ځو واره خپل ځایونه بدل کړل او دبرو پټیو لورته وروښویېدل . د ولسوال او سرکاري ماموران‌و لپاره فرش شوې چوتره له ټغرونو او توشکو سره د آسونو تر پښو اوسوو لاندې لتاړه شوه . هغوی له خپله ځایه په شا لاړل او په پای کې اړ شول د یو نږدې کـــــوربام ته وخېژي‌اوله هم هغه ځایه دوزلوبې ننداره او څارنه وکړي .

په لوبه کې د اسلم انډیوالان او د ملك شاسوار زمن او د هـــغوی پلویان کرار کرار یو له بل سره مخامخ کېدل . دا یو کال کېږي چې دبنو او ده سلا ، په ودونوکې د صیاد د زلمیانو تر مینځ د وزلوبې سیالي پیل شوې ده ، لیکن نن د ولسوالۍ په مرکز او د حکومت تر مخ په رسمي وزلوبه کې داسلم او ملك شاسوار دښمني خپله ښه ښیي .

میـــدان د صیاد د بزګرانو لاس ته لوېدلی دی . اسفندیار ، قاسم او

نظر پهلوان د میدان تر ټولو خوځند سپاره دي ، د ملک شاسوار درې واړه زمن میرزا اسفندیار او شیر باز آسونه ځغلوي . اسفندیار په ځان باندې چاپ انداز دی . نن یې د سیالۍ په کار کې د صیاد د سودخور حاجی جانداد نامتو سمند ترلاسه کړی دی. میرزا د پلار جیرن آس راوستی او شیرباز د آرزو د درې د ملک سنجر چغر ځغلوي ، آدینه او جبار وزلوبان دي خو د داسې سترو میدانونو مېړنی نه دي ، لیکن قاسم او د ارزنګانو نظر او د مهردل د تره زوی سکندر نامتو سپاره او وتلي وزلوبان دي . دوی ته نن ښه آسونه لاس ته نه دي ورغلي . قاسم خپل آس راوستی دی .که څه هم ښه آس دی خو هغه یې چندانې ښه نه دی ساتلی . دهقاني کارونه یې پې کول او د یابو کار به یې ځینې اخیست . د مهردل ، تور مشکي آس د سمنګانو د غزني ګک د حاجی عبدالرحمن د آسونو له ذات څخه دی . دې آس لا په اندراب کې بزکشي نه ده کړې . خو نن یې د اسلم همت او بخت ته سپارلی دی . د مهردل چرګی آس چې پخوا په اندراب کې نامتو شوی ؤ ، د مخ د کېڼې پښې د ژوبلېدو په وجه پوره یو کال له لوبې څخه ایستل شوی دی ، خو مهردل غوره کړه چې هغه نن و ځغلوي .

په وزلوبه کې د اسلم له انډیوالانو سره د ملک شاسوار او د برې درې د خانانو مقابلې ، د قمچینو خرپهار ، پر آسونو باندې د سپرو چیغو نارو ، کنځلو او د رکابونو جنګ ، د پهلوانانو ترخو خبرو ، له لوړو ځوړو ، کندو او کنډرونو څخه د آسونو الوتلو ، لوېدلو او رغښتلو ، د وزلوبې میدان ته د جګړې د ډګر بڼه ورکړه .

اسلم د وزلوبې د میدان په پورتنۍ څنډه کې د مهردل په مشکي آس سپور د صیاد د کلي دکاندار صوفي محی الدین ته عـذر کاوه چې

خپل بزکش آس کوم چې زوی یې هغه نشي تکیه کولای د وزلوبې د تولې د برابرولو لپاره نظر چاپ انداز ته ورکړي .

صوفي محی الدین د اسلم د روا او سمې غوښتنې ځواب نه درلود لیکن تشویش یې کاوه چې که خپل آس نظر پهلوان ته ورکړي ملک شاسوار به ورڅخه خپه شي او بیا به په حکومت کې هره ورځ سرخوږی ورته پیدا کوي؛ ځکه یې اسلم ته د رد ځواب ورکړ او وې ویل زما زوی لا پرون په ما باندې اینبې وه چې زما آس به سبا بل چا ته نه ورکوې . اسلم د دې خبرې په اوریدو مشکي ته پونده ورکړه او د ننداړچیانو د کتارونو پرلوري مهردل ته ورننږدې شو. هغه یې راوباله او ورته وې ویل : صوفي محی الدین راضي کړه چې خپل آس د ځغلولو لپاره د ارزنګانو نظر پهلوان ته ورکړي ګنې زموږ د انډیوالانو لاس به خالي پاتې شي او زړونه به یې ولوېږي . مهردل د قبول سر وښوراوه بېرته خپل ځای ته ورغبرګ شو او د اندراب د څارنوال په غوږ کې یې څه وویل . څارنوال هلته ولاړ عسکر راوغوښت ، هغه ته یې وویل : هغه غنم رنګه ګردي سړي ته چې توره ببره ږیره لري او صوفي محی الدین نومیږي زما له لوري ووایه چې خپل بزکش آس د ارزنګانو پهلوان نظر ته ورکړه ، که یې دا خبره نه منله بیا هغه پخپله ما ته راوله .

د مهردل مشکي آس تر اسلم لاندې سخته بې تابي کوله ، هغه یې پر زین باندې ښکته او پورته غورځاوه . پرله پسې ششنېده ، سر یې یو خوا بل خوا اچاوه ، نس یې په لنګتو واهه او د بزکشۍ د میدان پر لوریې هڅه کوله .

صوفي محی الدین د پیغام له اوریدو سره سم اسلم ته تر خوشامندو او دلاسایني وروسته وویل : له ما مه خپه کیږه ، زه د ملک صاحب له

زوره نه‌یم ځکه مې آس نه درکاوه اوس چې ښارنوال صاحب پخپله ما ته وویل آس به درجار کړم . اسلم د صوفي محی الدین له دې خبرې سره سم هغه ته کورودانی ووایه او سم دلاسه یې مشکې د وزلوبې ښندې ته وروځغلاوه . نظر ته یې له قورې ښخه د راوتلو اشاره ورکړه ، هغه له قورې ښخه راو ووت او په اسلم پسې د بزکشۍ له میدان ښخه راګوښی شو . اسلم هغه ته د ډاډ ورکولو په ضمن کې وویل : زما خوښه دا ده چې زه ، ته او سکندر د وزلوبې له قورې ښخه ځان په ښنګ وساتو او د میدا ن په ښنډ ه کې د حلال دایرې ته د ملکانو د چاپ اندازانو د نیږدې کېدو مخه ونیسو . او د ورغومي د ا یستلو شخړه قاسم ، روزي ، ګلاب او نورو هلکانو ته ورپرېږدو .

ــ ولې موږ به څه ورغومی د حلال دایرې ته نه رسوو ؟

ــ خامخا به یې رسوو . لیکن دا خو یوه هیله ده . یوازې په وچ زور سر ته نه رسېږي ، یو څه برلاسی او یو څه عقل غواړي . زما فکر دا دی چې ستا آس هم بدل کړو .

ــ نو کوم آس به راکوې ؟

اسلم موســکی شو ، سترګه یې ورته ورپوله او وې ویل : د صوفي محی الدین کرنګ به وځغلوې .ښنګه...!

.ــ رښتیا رښتیا ، دا له کومه ؟

ــ ورشه خپل آس د هغه زوی ته ورکړه ، کرنګ ځنې واخله او سمدلاسه له سکندر سره د حلال د دایرې لوری را تم کړه ، زه هم پسې در رسېږم وروسته به د میدا ن موازنه معلومه شي او موږ به په هوسا صورتونو د ورغومي د ایستلو اقدام وکړو . ما د قاسانو له مظفر او د پشیي د بزکشا نو له مشر محمد مراد نه د انډیوالانو د مــلاتړ وعده

تر لاسه کړې ده . تاسې به هم د هغوی ملاتړ او رعایت کوئ .
وزلوبې شېبه په شېبه سختوالی پیدا کړ . کله به چې اسان د ورغومي چارپېره سره چکې شول او وزلوبانو به د ورغومي د راپورته کولو لپاره ځانونه له زینونو څخه ځمکې ته ورځوړند کړل ، حریفانو به خپل آسونه د هغوی پر زینونو او آسونو وروخېژول او د متروکو باران به یې پې جوړاوه.
قاسم د لوبې په سر کې ډېر ښه وبرېښېده . هغه د خپل شجاعت ، صراحت او سپینې وینا په خاطر د وزلوبې په شوقیانو ګران و . کله به یې چې ورغومی د آسونو له غویمنهٔ نه راګوښی کړ ، نندارچیانو به پې چیغې کړې : آفرین قاسم خانه ، په مور پلار دې رحمت شه . خو آس یې کمزوری ؤ . ځان یې هدف ته نشو رسولای او قاسم خان به بیا د آسونو په غوبل کې چاپېره شو او ورغومي به یې له لاسه ولوېده .
د لسو بجو په شاوخوا کې اسفندیار د جانداد سودخور د آس په سپرلو له قاسم سره ترازو شو . اسفندیار په ځغاستو کې له قاسم نه د ورغومي د راشکولو لپاره هغه ته زورور ټکانونه ورکړل ، خو موقعیت داسې راغی چې د ده آس د پولې سر ته او د قاسم آس دپولې ځوړ ته شول او د اسفندیار آس د قاسم د وروستي ټکان له زوره د پولې کوز لوري ته په ډډه ولوېده . اسفندیار او ورغومی په وچه شودیاره کې لاندې باندې سره ولګېدل او دوړې ترې پورته شوې . نندارچیانو په یوه آواز چیغې کړې : آفرین قاسم خانه !
اسفندیار د دوړو له درمند څخه راووت خپل آس یې له نظره تېر کړ او دوباره د سپرو په لیکه پسې ور وځغاست . ورځ ورو ورو پخه شوه . لمر خپلې تودې شغلې په پټیو او پولو بانــدې لکې کړې ، د شاوخواغرونو

تبۍ یې پخپلو شغلو کې ولمبولې او د بزکشۍ میدان یې د نوراني غشو تر گوزارونو لاندې ونیو . پرمختګ ، ځغلیدل او د برې دا یرې ته رسېدل ډېر سخت شول. لوبه د خولې شویو آسونو او ستومانه پهلوانانو په زور آزمویلو کې د آسونو په ششنهار، د منډو په درزا او د وزلوبانو په هیجان کې دومره په زړه پورې شوه چې هرچا به ورغومی د آسونو له چکۍ څخه ویوست ټول نندارچیان به په ځای کې جګ ودرېدل او په شور او نارو به سر شول . په همدې وخت کې اسلم له نظر او سکندر سره د آسونو له باندینۍ دایرې څخه د قورې مینځ ته ورننوتل او خپل اساسي یرغل یې د ورغومي د ایستلو لپاره پیل کړ. تور مشکي آس لکه وږی لېوه چې په رمه ورګډ شي په بوڅو غوږو او په پرله پسې میل کېدو او مخ په وړاندې زور کولو ورغومي ته ورسېده او کله چې نظر او سکندر په ده پسې د ورغومي د جګولو دایرې ته نیږدې شول اسلم نظر ته د ورغومي د جګولو اشاره ورسوله .نظر د محی‌الدین کرنګ څو څو وا ره ورغومي ته ورساوه او هغه یې جګ کړ خو د متروکو باران به پې پیل شو . بزکش آسونه به په دوو پښو پر زین او ملا ور وختل او د ده منګولې به یې له ورغومي څخه جـــلا کړې . په پرله پسې هلو ځلو کې یو ځل د آسونو چکۍ ماته شوه او دسپرو یوه غوټه له هغې نه راووته . نظر ورغومی په داسې حال مخ په حلال دایرې وځغلاوه چې ښۍ خوایې اسلم او کینه خوایې اسفندیار ځغلېد ل. د نظر د آس پښه د موږک په سوړه لاړه له آس سره یو ځای پړ مخې ګوزار شو . اسلم راوګرځېد او ورغومي یې اوچت کړ . اسفندیار د هغه کینه خوا ونیوله او ځان یې ورسره ترازو کړ. اسلم د آس مخه یو ښوینده ځوړ ته وګرځـــوله او اسفندیار یې په همدې ځوړ په ځـــان پسې راښکود. په

مشکي يې کريغه کړه ، تر اسفندياره وړاندې شو او بيا يې ورغومي ته داسې ټکان ورکړ چې اسفنديار اوچت له خپله زينه را جلا شو او د مشکي پښو ته پرېووت . ورپسې په ځوړ باندې د آسونو سيلاو رابرابر شو او د مشکي ليکه يې تعقيب کړه . اسلم د ميدان په بله څنډ ه راوخوت او لارېې د حلال دايرې ته ورسيخه کړه او د نندارچيانو په شور بگت کې هدف ته ورسېده . ټول خلك په ځايونو کې ودرېدل او د آفرينونو او شاباسونو شور فرياد د بنو د وزلوبې د ميدان فضا ډکه کړه . د نام خدا او ماشاءالله باران پيل شو ، د ميدان حکم مخ په اسلم آس وځغلاوه او تر شاباسي او ستاينې وروسته يې هغه د ولسوال لوري ته ورسره راوو ست . د ولسوال سترگې په غنم رنگې پياوړې او لوړ زلمي باندې ونښتې . تور مشکي آس چې د پيکي ښايسته ويښتانو ، د تندی سپين ټاپ ، پراخې سينې او د غاړې ببرو اوږدو څنويې افسانوي پرتم ورکړې و ، د ده په زړه کې د قدردانۍ احساس وپاراوه . اسلم د اندراب د ولسوال احترام ته له آس څخه راکوز شو ، سلام يې واچاوه او د گوپيچې په لستوڼي يې د مخ خولې پاکې کړې . د سر ويښتان يې د خولو له زوره په تندي او باړخوگانو پورې نښتې وو . پر کينۍ غوږ او د ښي لاس په گوتو کې يې د وينو څاڅکې ځلېدل . دنگه ځواني ، خړه بخملي گوپيچه او تور برزو ، پې د پاسه ترکمني موزې او تر ملا سور گل‌سيب دسمال ...

ولسوال هغه وړاندې راوغوښت په غېږ کې يې ونيو او سره ورېښمينه چپنه يې په وږو ور واچوله . اسلم د ولسوال لاسونه ونيول ، سريې د مننې او احترام لپاره ورته ټيټ کړ او د کورودانۍ له ويلو وروسته راوگرځېد ، سپور شو او مشکي يې د ميدان پر لوري وځغلاوه.

گلک په وارخطايي او بيړه ځان څارنوال ته ورساوه: دا قهرمان دې وپيژانده؟ دا خو اسلم دی چې د مهردل په آس يې وزه د حلال دايرې ته ورسوله . هغه دی وگوره ، په لاس يې عامو نندارچيانو ته د سلام اشاره وکړه ، په مهردل باندې خلک راټول شوي دي . گرد سره مبارکي ورکوي . دغه آس يې يوه مياشت مخکې له سمنگانو څخه راوستی دی . وايي چې د حاجی عبدالرحمن د آسونو ذات دی ، خو په همدغه ورغومي يې بيه پنځوسو زروته لوړه شوه . څارنوال صاحب وزلوبه څه کوې سخته دا ده چې زموږ ټولې خوارۍ په اوبو لاهو شوې ، اوس يې ولسوال هم وپيژاند ه !

څارنوال د وزلوبې تر اغيزې لاندې هيجاني شوی و ، د گلک وربوزيې له خپل غوږ څخه پورې واهه او وې ويل : گلکه! دا د دغو خبرو وخت نه دی . پرېږده چې خپل سيل وکړو .

ــ نه زوروره ! ودې ليد که نه ، وايم ولسوال صاحب په خپلو مبارکو لاسونو چپن ورواغوسته . په ملک شاسوارکې خويې ټول زړه ويلې کړ . په هغه باندې نور خوب او راحت حرام شو . ورروسته تردې اسلم پهلوان ته ملک شاسوار او گلک نسوار هم نه دي ، موږ غريبگوټي خو پرېږده د خدای په روی مې قسم دی که حاجي عبدالاحد او د پلخا حاجي عبدالوهاب او ان سناتور سيد اشرف خان هم ورته ټينگ شي . پس له دې به د غلو او قماربازانو دوران وي . څارنوال چې يو څه ځوان طبيعته او د بزکشۍ ليوال و ، په ډېر کراهت يې ملا گلک ته مخ واړاوه ، منت يې ورته وکړ ، په ترخه غاړه يې ورته وويل: رنگ دې ورک کړه ، گونگی شه !

د دوهم بري لپاره مبــارزه خورا خونړۍ شوه ، په پولو او شوديارو

کې ، د دوړو په تورتم کې چاپ اندازانو د یو بل سر ته قمچینې سیخې کړې . ناڅاپي د دوړو له مینځه د قاسان پهلوان مظفر راووت . ورغومي يې په تقوم کې ونیو او مخ په حلال دایرې وڅغلیده . چاپ اندازانو مخه ورته ونیوه ، هغه د منڼې د دایرې د پراخولو لپاره د لارې په لټون د رود خوا ته سیخ شو . اسفندیار د هغه لکۍ ونیوه او کرار کرار ورسره ترازو شو . اسلم په پهلوان مظفر باندې نارې کړې : پهلوانه د سین لور ته ، د سین لور ته او بیايې مشکي ته تازینه ورکړه او د ترازو شویو آسونو ترمینځ ننووت . هر درې واړو پهلوانانو د رود اوبو ته ودانگل ، اسلم د سخوندر کېڼه پښه چې د پهلوان مظفر له تقوم څخه خطا شوې وه ، ونیوه او په مشکي باندې يې هیبت وکړ . زور ورو اوبو او د راده د تل ښویو ډبرو د آزموینې کار سخت کړ . اسلم اسفند یار ته مخامخ ، لکه خوني پړانگ په څیرو سترگو وکتل او له خولې يې ور ووتل : « ټینگ شه دا د تخت او تختې لوبه ده » او بیا يې داوبو او ډبرو په مینځ کې د آس د څغلولو تلوسه وکړه . بخت ورسره ملگرى شو او د ملك شاسوار د زوى آس وښویده او پر ډوبو ډبرو باندې پړ مخې پرېووت . مشکي زۍ ته راوخوت . اسلم کوشش وکړ چې یوه لویه دایره پریکړي او ورغومي د حلال په دایره راوڅرخوي لیکن واټن ډېر اوږد و او د سپرو ډله له شاوخواپې راتاو شوه . ورغومي يې له لاسه وشکېده او د اوبه شوې شودیارې په خټو کې ولوېده .

هغه ورځ وزلوبې د معمول په خلاف زیات دوام پیدا کړ ، نظر پهلوان څو څو واره دايرې ته ورغومى نږدې کړ لیکن هدف ته و نه رسېد . د قاسم آس په کېڼ لاس ژوبل شو اوله وزلوبې څخه فارغ شو . د میدان حکم ولسوال ته د لوبې د تمامولو لپاره ، مشورې ته ورغى او په

همدې شېبه کې لوبه بیا میداني شوه . نندارچیان د شاباسي په چیغو ناروکې ودرېدل او همدایې تکرارول : مشکي مشکي ، آفرین مشکي ! اسلم د مخه او د وزلوبانو یرغلگر لښکر ورپسې ، هغه د دایرې پر لوري هواره لاره خوشي کړه او مشکي یې مخامخ د میدان داړخ د باغچې پر دیوال ور ووست او پر دیوال واوښت ، د باغچې دلښتو او څانگو له مینځه له هغې بلې خوا څخه د وزلوبې میدان ته ورتېر شواو پـه دې توگه یې لاره د حلال دایرې ته لنډه کړه . د خلکو شور او چیغو فضا ولړزوله ، هله هله رسېدلي یي لیږ نور ... اسلم د آس ملونه خوشې کړه او ژر ژر یې تر شونډو لاندې دا دعا تکرار کړه : ( خدایه مه مې شرموې ) او ورغومی د دوهم ځل لپاره د حلال په دایره کې ولوېده . د نندارچیانو شور او هیجان انتها ته ورسېده ، ټولو نارې کړې : مشکي مشکي آفرین آفرین ، نام خدا . د میدان حکم بیا د حلال دایرې ته ور وځغلیده . هغه د تحسین په جذبه کې د اسلم سر او سترگې چپ کړل او د دوهم ځل لپاره یې ولسوال ته راووست .

سترې مشکي سر یوه خوا بله خوا اچاوه او د ترهېدلي په څېر یې سترگې غټې یوه خوا بله خوا اړولې او خرېده . گلك بیا په څارنوال پورې ونښت او مخاطب یې کړ : څارنوال صاحب اوس ډېره سخته شوه خدازده دا به څنگه شي . له دې اسلم نه خو سم دم ښامار جوړ شو ، اوس والله که ټول اندراب ورته ټینگ شي . پور خویې اوس لس چنده په ملك شا سوار باندې واوښت .

څارنوال چې د وزلوبې په خوند او خیال کې ډوب تللې و او گلك یې د مزو دنیا خرابوله ، په غصه یې گلك ته ځواب ورکړ : مېړانه خو خدای ورکړې ده ، حکومت خویې نشي ترې اخیستلای .

ــ کومه مېرانه؟ آس د ملک یوسف د زوی ، کالي د آدینه او ډوډۍ د قاسم خان ، مېړانه خو په دغو شوي ده . څارنوال گلک ته بد بد وکتل،له ځایه راولاړ شو او لاړ د ولسوال شا ته د نورو سرکاري مامورینو په مینځ کې کېناست .

وزلوبې د مهردل د زړه تنا بونه په اسلم پورې وتړل . هغه خپله ټوله مینه د صیاد بزگرو زلمیانو ته چې د تورې او مېړانې کسان وو ، وروسپارله . له اسلم سره همدردي او ملگرتیا د مهردل په مغزوکې پخوالي ته ورسېدله ، هغه قانع شوی و چې له اسلم سره ظلم شویدی او دا اوس هم ملک شاسوار حاضر ندی د هغه اوښکې پاکې کړي او بیا هر څه چې وي زه ولې د دې زوړ ظالم ملاوتړم ، د قاسم خان او جبار دوې ملگرتیاو نه کړم ؟ ولې په غدارانو او رشوت خورو باندې د ستر پردې وغوړوم ؟ زما مړی ژوندی خو له همدې ساده ولسي ځوانانو سره ښه پالل کیدی شي نه له ولسوال ، قاضي ، کوتوال او نورو سرکاري مامورینو سره . نو ولې خپل وزر ماتي وروڼه ورته وتړم او د هغوی وینې پې وڅښم ، دا طریقه خو نه د خدای خوښېږي او نه د خلکو او بیا هر څه چې وي آخر مرگ دی . زه ولې د ظالمانو د رضا لپاره خپله دنیا او آخرت خراب کړم .

مهردل د اسلم ساده او سپېڅلي منطق د ملکانو له اغېزې آزاد کړی او په ده کې یې نوې اندېښنې پیاوړې کړې وې . گام په گام له ملکانو او حاکمانو او د زور له خاوندانو څخه رالري کېده . پرون ده ته د دهانې غورې علاقدار د مېړانې او ویاړ نمونه وه لیکن نن اسلم پهلوان ده ته نمونه ده . د دهانې علاقدار خو پردي جیبونه وهلي دي او د استاد حمید خبــــره د ده د ښځو او لورانو په غاړو کې پراته غړواندي

د بزگرانو د لاس له پوليو او د مجبورانو د اوښکو له لړيو څخه ساز شوي دي . دا خو د مېړنيو کار نه‌دی چې د نورو د کورونو په خرابولو د ځان لپاره د قدرت مانۍ ودروي . دا خو برالا غلا ده، داخو لوټ او تالان دی ، دا خو د ټپوسانو کار دی چې مرداره خوري او هر چېرې چې مېزگه وگوري پې ناست وي ليکن کجير مرداره نه خوري او په مېزگه نه کښني . پاس د نيلی آسمان په کوږم کې وزر رپوي او له هم هغه ځايه لکه تندر په خپل ښکار راکښته کېږي . همدا الوتونکي د ستايلو وړ دي . قاسم خان د ستايلو وړ دې چې د لاس په تڼاکو روزي پيدا کوي او په پراخ زړه هغه له هر محتاج او بېوزلې سره ويشي. سترگه يې له فلك او ملك څخه نه سوځي او د اسلم غوندې غيرتي ځلمو ته مټ ورکوي .

بريالي وزلوبان د سترو ستومانه اسونو تر جلب لاندې د وزلوبې له له پاي څخه د خليفه ميراحمد د سماوات پر لورې د بنو بازارته را ننوتل . په دوی پسې وروسته له ميدان څخه د راماتو شويو پليو او سپرو ننداركچيانو پرگنه چې اسلم پهلوان او مهردل يې په مينځ کې نيولي وو، را روان وو. ننداركچيانو د لاس او سر په اشاره اسلم پهلوان يو بل ته ښوده او هغه يې د خپلې مينې په څرگندولو وياړه .

د اسلم د وزلوبې ملگري چې د وياړ او بري احساس مد هوشه کړي وو، د خندا او مسخرو په شور بگت کې د خليفه ميراحمد په سماوات ورننوتل . روزی چې د لاس گوتې يې په وزلوبه کې گرژالي شوې وې او د لوبې درندوالي ستومانه کړی و، سماوات ته له ور ننوتو سره سم ، بې له دې چې د وزلوبې چکمن او برزو او په ختو خاورو لړلې مــوزې له پښو وباسي، ځان يې د سمـــاوات يوه تخت ته ورساوه،

ستونی ستاغ پر هغه وغځېده‌او په ملاستویې پر آدینه باندې چې له معلم جمعه سره لاس په لاس د سماوات په دروازه‌را ننووت ، نارې کړې : آدینه جانه خبرې پرېږده . دنبوره راواخله او دنیا په سندرو ډکه کړه . په دې کې قاسم خان چې د چاینکیو د چرګۍ اړخ ته یې پلترۍ وهلې وه او د ایره شوي انګار په سکروټو کې یې ډکی خوځاوه ، د وزلوبا نو په ګڼه ګوڼه کې سر راوچت کړ ، په داسې حال کې چې سپوژمې یې راښکودې د غوسې په غاړه او لوړ آواز وویل : خلیفه میراحمده ! دلته دچرسو بوی خورېږي . دا چا څکولي دي ؟ هغه په داسې حال کې چې ځوړند سر د دخل شاوخوا د لوښو او چاینکو په سمبالولو بوخت و، په پسته خوله ځواب ورکړ : دا خو سماوات دی ، دلته هره ګروه راځي . کوم عملي به څکولي وي کنه !

د قاسم خان د ګواښ ته ورته فریاد په وجه ، د وزلوبانود شوربګت ځپه راولوېده ، ګرد سره د خلیفه میراحمد سره د قاسم خان شخړی ته ځیرشول . هغه په هماغه جوش او غوسه خبره اوږده کړه : دا د ټوکو خبره نده ، با بېزه یې تر غوږ مه تېروه . د تورې چرګې ملا بې دې هم موږ چرسیان ، لاروهونکي او قماربازان بولي او که داسې آسانه بېلګه هم ور پیدا شي بیا نو رشوت خواره ماموران خو پرېږده خدای چې پرهیزګاره مفتی جلال به هم زموږ په تورولو قانع کړي .

میراحمد د قاسم خان په وروستۍ خبره ټکنی غوندي شو ، پخپل ځای کې اوچت ودرېده ، ژبه یې ترړۍ شوه او په وارخطایي یې هغه ته وویل : قاسم جانه د حکومت خلک ... مقصد مې همدا خپل د اندراب مامورین دي ، د چرسو په معامله پسې ډېر سر نه ګرزوي . زه پخپله هم ماخستني چې له کـــاره وزګار شم د دې فقیر بوټي په یوه ګل

دود باندې د ورځې ستومانتیا باسم . او کله کله خو د جمعی په شپو د مالیې مامور صاحب ، د احصائیې سرکاتب او ځینې نور دوستان ، تر تاسې دې به نه وي ، د ماښام له مخې چې کار او بازار وتړل شي ، همدې فقیرخانې ته راځي او یو څه ځان خوشالوي .

قاسم‌خان سترګې برګې کړې او په شمېرلو الفاظویې هغه ته وویل : ما ته د لیلی او مجنون قصه مه کوه . ما ته لنډه ووایه چې دغه اوسنې چرس چا څکولي دي ؟

ــ دا ... دا خو یوه شېبکۍ وړاندې ستاسې د کلی اسفندیار او دهغه ملګری راغلی وو ... !

قاسم‌خان خبره په خوله کې ور وچه کړه : نو تا هغه ته ونه ویل چې تښتېد لې مېزان په چرس څکولو نه جنګیالي کېږي !

ــ نه ، ما دا خبره ورته ونکړه .

ــ نو تا څه ورته وویل ؟

ما په عاجزۍ او عذر هغه ته مخ ور واړاوه چې نن ځما سماوات مهردل‌خان خپلو مېلمنو ته ټیکه کړی دی او ټولې پیسې یې تر وخت پخوا پرې کړې دي . د دې خبرې په اورېدو هغوی پخپل منځ کې څه سره وویل بیا ولاړ شول او لاړل . په دې کې روزي له ملاستې څخه راکېناست ، غوږېې وګراوه او سترګې یې د پوښتنې لپاره سماوات چې ته را واړولې : له هغوی څخه دې کومه بله خبره واورېده که نه ؟ د وزلوبې په باره کې یې څه و نه‌ویل ؟ قاسم‌خان بې واره په خبروکې را ترپله او روزي ته یې وویل : ته پرېږده چې زه له خلیفه میراحمد څخه د اصلي خبرې پوښتنه وکړم . بیا یې مخ په میراحمد خوله خلاصه کړه: ښه خلیفه میراحمده اسفندیار خو به د اسلم‌پهلوان

په باب کومه تر خولې تېره خبره نه وي کړې او د چرسو په لوخړو کې به يې کومه د کبر دوړه تر خولې نه وي ايستلې ؟

ميراحمد د کسبي دکاندارانو په خوږه ژبه ځواب ورکړ : نه قربان اسفنديار دروند سړی دی، سپکه ژبه نلري خو د زلميتوب په وجه کله کله او گل گل د سپاره چلم د لوگولو مينه کوي .

جبار چې د سماوات په برني تخت باندې د پهلوان نظر په ټپي شويو گوتو باندې ريتاړې تړلې مخ ميراحمد استاد ته په جگ ژغ وويل : اسفنديار اوس هغه چا ته ورته دی چې په لوی مجلس کې يې باد پرې شي او بيا يې د خپلې خطايي پټې کولو ته خوله نه سمبړي او هيچا ته پورته نشي کتلای . ټولو د جبار په دې خبره باندې په کړس کړس وخندل او هر چا د مسخرو له مخې خپلې نکتې پې ورزياتې کړې .

خليفه ميراحمد د لومړي ځل لپاره پخپلو غوږو اورېدل چې د کليو او درو مېړنې زلميان يو د بل کمه وايي او د سيالۍ وطني دود سپک تلي. هغه بالکل ټکنی او پرېښانه شوی و ، په ځواب ويلو کې يې خپل خير نه لېده او د سيخ ځواب لپاره پخه خبره خولې ته نه ورتله . له بل لوری اسفنديار د هغه د چرسو او چلم ملگری ؤ او د قمار په ميدان کې به دواړو په يوه زړکه شرط تاړه . په دې وجه هغه ته سخته وه چې د چلم او تاوان د ملگري په باب د چا سپکه او پيغور بې ځوابه پرېږدي . په دې کې اسلم او مهردل د ده سلا له څو تنو زلميانو سره چې دوی دغرمې ست ورته کړی و ، راننوتل او د قاسم خان د يارانو د شوربگت پر جوش باندې سړې اوبه توی شوې .

مهردل مخامخ د سماوات د شمالي کړکۍ لور ته چې مخ په درې ور سپـــره وه ورتېر شو او له خليفه ميراحمـــد څخه يې پوښتنه وکـړه :

د خوراک لپاره دې څه تيار کړي دي ؟

ــ د تا له برکته هر څه شته صاحبه ! چاینکیانې تیارې دي . سیخي کباب هم تر لومړنی اور تېر شوی‌دی . سره تازه مرچکي ، ثلاته ، ترخه چايونه ، دشلمه ، نسوار او ترخه چلمان او که د فقير بوټې څوک شوقيان درکې وي ښه په مزه شيرگي چرس هم شته‌دي ! دا د چرسو په يادولو ميراحمد د خپل زړه غوټه اوبه کړه او بنده شوی سايي په گوگل آزاده شوه .

مهردل مخ مېلمنو وزلوبانو ته را واړاوه : تاسو نن د خپلې مېړانې او تورې په وجه د خليفه ميراحمد په چاينکيو او کباب باندې زما مېلمانه یاستئ . هر څه چې په دې سماوات کې پيدا کېږي يارانو ته وړيا دي . تاسو به ډوډۍ خورئ ، اسلم پهلوان او زه به مو له خليفه ميراحمد سره خدمت کوو ، معلم جمعه او آدينه به غبرگی دنبورې وهي او د ښو آسونو او ښايسته نجونو په باب به سندرې بولي . په دې کې قاسم خان مهردل ته وويل : ته او اسلم پهلوان به له انډيوالانو سره په ډوډۍ کېنئ او زه به له خليفه ميراحمد سره د مېلمنو خدمت ته ودرېږم . خليفه ميراحمد وويل : سمه ده خو شرط يې دا دی چې د سواره چيلم او ډکول به هم په غاړه اخلې ! د ميراحمد په دې خبره ، قاسم خان ته نيږدې ناستو څوتنو وزلوبانو په کټ کټ وخندل . ده پخپله هم وخندل ، خو مهردل دخندا په وجه پوه نشو وروځی يې پورته وغولاځولې او سترگې يې د استفهام په توگه غټې کړې . په دې کې غبرگې دنبورې په غږېدو شوې او د سپرو سترې پلې او ځپلي غړي يې د موسيقي په جادوگرو څپوکې راونغښتلی :

د بنو په بازار کې ننني وزلوبې هر څه بدل کړل . اسلم په همدې ورځ د شهرت تر ټولو لوړې پوړۍ ته وخوت . د ده د غمونو قصه دخلکو قصه شوه . ملک شاسوار د اندراب د خلکو د نفرت په څولۍ کې پرېووت ، له اسلم سره د ده د تېري او ناروا داستان د هر اندرابي وطندار د زړه داغ او د ژوند عبرت شو . د ده سرګذشت د ده د مېړانې په برکت له خولو څخه خولو او له سینو څخه سینو ته نقل شو او دی یې د اندراب په غرنیو کلیو او ښکلو درو کې لکه د سبا ستورۍ وځلاوه . د اسلم د مهارت او مېړانې په سبب د ځلېدونکو سترګو مشکي آس ، د آسونو میر شو . آس خوښوونکو او زلمیو بزکشانو د آس په اړوند مهردل هم د شهرت لوړ دریځ ته وخېژاوه . تور مشکي آس ، چرګی آس ، داسې آس چې په لیدوېې سړی نه مړېږي . څک غوږونه ، بیدارې څارونکې سترګې ، پراخه سینه او د غاړې لړۍ لړۍ ګاړګوتي وېښتان ، د منډې په وخت کې الوتونکي ټوپونه ، پراخې سپوږمې او یرغلیزه ځانګړتیا ...

مهردل ډېر بختور سړی دی چې د داسې آس خاوند شو . بخت یا په آس دی یا په ښې ښځې ، همداسې آس او همداسې بزکش ، د سپاره رنګ په آس ښه کېږي او د آس رنګ په سپاره . هم هغه ورځ خلکو په دکانونو ، کلیو او کورونو کې همدا خبرې تکرارولې . بازار ته راغلیو نندارچیانو او د بېلا بېلو درو بزکشانو د اسلم نوم او د مهردل د مشکي آس قصه له ځان سره کورونو ، جوماتونو او خپلو حجرو ته یووړه او د خلکو په حافظو او عاطفو کې یې وکرله .

د ولسوالۍ بلهې خوروته کار سخت شوی و . مفتی جلال چې د اندراب په محکمه کې د پاک وجدان خاوند و ، له خوښۍ څخه په

جامو کې نه ځایېده، هغه ویل چې : اوس به څوک د اسلم پر حق سترګې پټې کړي ؟ خدای د حقې لارې مل دی، هغه یې د کاوه آهنګر په څېر د خلکو غبرګې ته ورواچاوه او لکه ابراهیم په اورکې یې وساته. اوس چې هر څوک د هغه پرحق سترګې پټوي ځان شرموي.

ګلک ډېر وارخطا و. سپینه ګردۍ لنګوټه، پې د پاسه د ګل سیب دسمال چې تر زنې لاندې یې غوټه کړی و. خړه خیرنه پیوندي جبلکه او زړې خړی شویې کلوشې یې اغوستې وې، د سرکاري مامورینو په کورونو ننووت او راووت. په هر کور او قشخانه کې د وزلوبې قصه روانه وه. د مهردل آس او د اسلم نوم د ټولو په ژبو ناست وو. ګلک له هر چا څخه او په هر ځای کې همدا نومونه اورېدل. ټوله دنیا ورته اسلم اسلم کېدله. شونډویې پترې نیولي وو. سر یې درد کاوه او تر لمر لاندې د وزلوبې ننداړې تبجن او کمزوری حالت ورپیدا کړی و. هغه فکر کاوه له ملک شاسوار سره به څه وشي ؟ د هغه سرنوشت به څه وي ؟ که د قاسان، بنو، ده سلا او کشنا باد سپین ږیري اومشران د اسلم په ملاتړ کې ودرېږي بیا به څه پېښ شي ؟ که ملک د اسلم په مقابله کې مات شو بیا خو زما هم لکه لړم کډه په شا ده. دا لا څه کوې که شاسوار له ما پوښتنه وکړي چې دا دوه لکه روپۍ دې په چا وویشلې ؟ زه به د دې روپیو څه ځواب کوم. ما چې دا سلم د بندي کولو ذمه وهلې وه، هغه خو برباد شوه. ولسوال، قوماندان او د جزا مامورین په ما څه بند څه خلاص، سند خو تر مینځ نشته، روپۍ دوی وخوړلې او مظلمه یې ما ته راپاتې شوه. ګلک همدا چرتونه وهل په رنځور ځان لکه لړم ګړندی ګړندی په کوڅو او کورونو راګرځېده او هیچېرې یې تسلی نه کېده. هر رشوت خور ته چې ورته د هغه له خولې یې د اسلم

او تور مشکي آس قصه اوربدله . دېوالونو ، ونو او بوټو ، ټولو او ټولو همدغه يوه خبره تکراروله ، آفرين ، آفرين اسلمه !

ملا گلک ماښام مهال په نامېندئ او تبه کې د پوليسو د قوماندانۍ د جلب د کاتب له کوره راووت او د بنو په بازار کې د جانداد بنجاره دکان ته په داسې حال کې ودرېده چې هغه د دکان نيمايي ورتخته کړې ؤ او د ماښام جمې ته يې بېړه کوله . گلک سمدلاسه هغه ته وويل : سپرين تابليت لرې ؟

ــ نه ، ملا صاحب .

ــ سيبازول شته ؟

ــ نشته . . .

ــ سپېرکۍ او باديان ؟

ــ نه ، دا يو نشته او هيڅ وړ دوا نلرم !

ــ ولې تا خو به دواگانې خرڅولې .

ــ اوس حکومت موږ د دوا له پلورلو منې کړی يو !

ــ عجيبه ده . د ښځو لپاره ، سرخي ، سپېده ، سيخکي او نور منهيات آزاد دي او دوا منې ده . بچه بازی ، غلا ، قمار او چرس آزاد دي خو سيبازول او سپرين منې دي ؟

جانداد د لمانځه په تلپوار کې بې له دې چې ملا گل رسول ته ډېره پاملرنه وکړي د دکان تختې په بيړه وتړلې او نېږدې جومات ته چې د آذان د پای تکبيرونه يې اوربدل کېده ورمنډه کړه . . .

ملک شاسوار د نن ورځې تر وز لوبې وړاندې ، دبري لپاره ډېرې هلې ځلې کړې وې. د نامتو وزلو بانو او ښوا سونو په پيداکولو او هڅولو کې يې هيڅ کمی نه و کړی .

د قاسان او درې څو مشهورو سپرو او دهغو اسونو ته یې لا څو ورځې دمخه دبنو په سماواتونو او سرایونو کې دپالنې او شپې تېرونې ځایونه سرشته کړي وو او په دې هدف یې لوی تاوان ته ملا تړلې وه چې په وزلو به کې به له اسلم پهلوان څخه چې د کلیو په ودونو او خوښیو کې یې دیوه وتلي وزلوب په توګه نوم ایستلی و، دحکومت او ولس پاملرنه واړ وي .ملک بیا ترهر چا زیات پخپل زوی اسغندیار پورې چې دځوانیو او سیالیو مېړه او پیا وړی وز لوب باله کېده خپله هیله تړلې وه . خو وز لوبې بله نتیجه راوړه او ملک یې نا هیله اوپه ځان بې باوره کړ.

د اسلم پلوي وزلوبان لوړ ماښام دټو کوټکالو،خند ي او مسخرو په جوش کې صیاد ته را ورسېدل. د کلي جومات ته نیږدې مهردل د سپرو له منځه قاسم خان ته په لوړ آواز وویل: لمونځ به ستاسي په جومات کې وکړو بیا به مخامخ زموږ کلي ته ور وځغلو! قاسم خان په ځواب کې ورته وویل: ولې ستا کلي ته ، دا زموږ څه کلی نه دی؟

دمهردل او قاسم خان سوال ځواب دسپروپام ځانته ور واړاوه له هر لورې پوښتنې پیل شوې : څه دي؟ خبره څه ده؟قاسم څه وایي؟قاسم خان وویل: جلبونه ونیسئ چې ټول په خبره سره پوه شو بیا به یو ځای پر مخ ځو، په دې کې مهردل را نیږدې شو او لومړنۍ خبره یې تکرار کړه.قاسم خان هم هماغه لومړنی ځواب ور کړ . په دې کې جبار وویل:

ـ مهردله ! ضرورت څه دی چې زموږ له کلي څخه ستا کلي ته ور تېر شو ؟

ـ ضرورت یې دا دی چې دننني بري شکرانه په ما او ښتې د ه !

ـ په موږ او تا کې څه توپیر دی ؟ زموږ زړونه، کلي او کورونه یو دي خو زموږ کلی یوه ځانګړنه لري هغه دا چې زموږ غلیمان همدلته او سېږي ،

پرپړده چې کرئ شپه زموږ دسندرو او خوښئ شور واوري او په غوسه او رخه کې وسوځي !

مهردل اسلم ته مخ وروا ړاوه: او ته په دې کې څه وايې ؟ هغه ځواب ورکړ: نن به دجبار او قاسم خان خبره ومنو. دماښام تر لمانځه وروسته به دقاسم خان په کور کې تر چرګ بانګ پورې دمعلم جمعه او آدینه سندرو ته کېنو خو په دې شرط چې قاسم نور تاوان ونکړي او داومني چې ټول انځ یوالان به دخپل کور له ماښامني دستر خان څخه خپله برخه دده دستر خان ته راوړ ي اودی به دچای او چلم په خدمت بسنه کوي

گلك په قزل آس سپور په دوړوکې د شولگرو او جوارگرو مځکو له منځه پر عمومي واټ د بنو بازار ته رراوان و . هغه یوه هفته وړاندې له کابل څخه بغلان ته او له بغلان څخه اندراب ته راغلی و . گلك د ملك شاسوار په مخ کې د منلو رامنلو او د کابل او بغلان په دولتی مامورانو کې دبلو له لارې د بلد بدو په وجه د غرور او کبر له باده پړسېدلی و . هغه د شاسوار د پیسو او رشوتونو د ویشلو په وجه په هغوی کې لار پیدا کړې وه . له کابل او بغلان څخه یې د اندراب په ولسوال ، قاضي او څارنوال باندې د سپارښت لیکونه راوړي وو او ډاډه شوی و چې د اسلم منگولې به د ملك شاسوار له گریوان څخه را وکاږي ، خو گلك ته په دې لوبه کې یو بل شیطاني فکر هم ورپیدا شوی و . هغه دا چې شاسوار به د اسلم په شخړه کې د خپلې باغچې او ژرندې خرڅلاو ته مجبور شي . ښایي چې په نیمه بیه یې وپلوري . نو آیا دا به ممکنه نه شي چې دا باغچه او ژرنده په یو وړ له وړو زما خپل مال او ملك شي . له دې تصور سره د گلك د ټولو تدبیرونو سلسله وخوځېده . ده له ځان سره وپتېیله چې باغچه او ژرنده باید خپله کړي بیا داسې وخت او امکان چېرې پیدا کېږي چې شاسوار له خپلې باغچې او ژرندې څخه لاس وکاږي ؟ ژرنده او باغچه لکه د فولادو برمه د گلك پر مغزو څرخېد له او نفوذ یې کاوه ، د دماغ ټول سلولونه یې د ژرندې له پل سره په چورلېدو شول . په غوږو کې یې د ژرندې د گړزېدو غور کی انگازې کولې او سر یې د ژرندې دمالکیت د شوق په جذبه کې لکه د ژرندې ټکټکانی ببواکه لړزېده . خدایه که دا ژرنده او باغچه زما شي او ملك شاسوار د اسلم له زوره خپله کلا او دا پاتي جایداد په ما خرڅ کړي ... البته په کمه بیه او پــــــه ... ارزان قیمت نو

دی خو بې له دېنه هم دلته زیاتي شپې نشي تېرولای... له اسلم او د هغه له انډیوالانو سره خو تر پایه سیالي او اودشمني نشي پاللای...خامخا به جایداد بیا په تیره ژرنده او باغچه په کوم چا باندې خرڅوي نو ولي یې په ما خرڅ نکړي؟

په دې کې یوه وجداني پوښتنه ورپیدا شوه چې ولې د خپل ورور او دوست، ملک شاسوار ورکې ته ناست دی او هغه د بربادۍ کندې ته غورځوي؟ هغه له ځان سره وویل: زه خو د ملک شاسوار په کمه نه یم، د جایداد پلورل خو د هغه په ګټه دي. د اسلم لېوان هغه چېرې پرېږدي چې په غوږه کونه خلاص شي. ملک نور دا ځمکه او پټي نشي خوړلای. هغه ته ښه دا ده چې خپل سر او د خپلو زمنو ژوند په امن کړي. هغه ته بې له دې بله لاره نشته چې جایداد خرڅ کړي او یوه امن ځای ته کډه وکړي. په دې کې د تورې چرګې ملا فکر یوه بل لورې ته راواوښت. هغه له ځان سره وویل: آیا که چېرې د خدای فضل په ما وشي او د ملک باغچه، ژرنده، کرونده او دا ټول جایداد زما لاس ته راشي آیا زما شپه به د اسلم له بدماشانو سره تېره شي؟آیا دوی به دغه زما بد وضعیتونه او ورانی هېر کړي او دې ته به مې پرېږدي چې د شاسوار په جایداد پریوزم او د صیاد د خلکو تر مینځ د عزت ژوند وکړم؟ زه څنګه د دې ټولو ګرم مزاجه ځوانانو له غوسې او ګواښ څخه ځان خلاص کړم او د قاسم غوندې کسات غوښتونکي ځناور رضا او دوستي حاصله کړم؟

نا څاپي یې په سترګو کې د هیلو څپه وخوځېده او ورویې له ځان سره وویل: کیدی شي چې دا خنډونه له مخې لرې شي. مثلاً دې ته اړتیانشته چې زه آدینه، قــــاسم خان، نظر او دغه هر بزکش جلا جلا

پخلا کړم . زه به ا سلم خپل کورته راوبولم . ډوډۍ گانې به یې وخورم او کرار کرار به د ملک شا سوا ر په مقابله کې د ده لوری ونیسم ، که په دې هم راضي نه شو خپله گلثوم لور به ور کړم ... گلک په خپلو شیطاني فکرونو کې ډوب و چې آس نوک وواهه . گلک ټکان وخوړ او لنگوټه یې ړنگه شوه او د فکر سلسله یې بل وا ټ ته ننوته ... رښتیا که ملک شاسوار د اندراب د خیر خوښوونکو مشرانو او چاپ اندازانو په مشوره له اسلم سره د روغې جوړې لار ونیوه بیا به څه وشي ...؟ نه نه، هیڅ کله به دا روغه ونه شي . له ملک شاسوار سره نه ښایي چې خپله لور په بدو کې اسلم ته ورکړي. او د هغه د کور او چمبر تاوان وگالي. ملکان او خانان تاوانونه نه پرېکوي ، دا د ملکانو طریقه نه ده او د دوی له عزت او دود سره سر نه خوري ... او بیا زه خو لا ژوندی یم ، هیڅکله به دا روغه سر ونه نیسي او زه به ټولې لارې د روغې په لور وتړم .

گلک لا د ملک شا سوار د ژرندې په ناوه ، څرخ او ډبرو کې تاوېده راتاوېده چې د دوړو او باد په څپو کې د بنو په بازار ننووت . د بازگل د سماوار له مخې تېر شو او هلته یې سترگې په څارنوال او د امنیت د قوماندانۍ د جزا په سرکاتب باندې ولوېدې . د آس ملونه یې تکیه کړه ، په تلوار له آس څخه راکوز شو . د سماوار چې شاگرد ته یې په لاس اشاره وکړه چې آس سرای ته بوزي او پخپله یې د ادب د رعایت د افادې په توگه مخ په څارنوال منډه ورواخیسته ، خو څارنوال له ځایه راولاړ نه شو او په ناسته یې لاسونه وروغځول او له روغبړ سره سم یې گلک ته وویل : پرون د مکلفیت سرکاتب اسلم جلب کړی و او له هغه څخه یې د عســکرۍ خدمت د نه تېرولـــو په دلیل تحقیقات

وکړل

ــ نتیجه څه شوه ؟

ــ نتیجه د تا په ګټه نه ده .

ــ ولې ؟

ــ ځکه چې اسلم د خپلې دفاع لپاره قانع کوونکي او قانوني دلیلونه وړاندې کړل . هغه ویل چې زه بې کسه سړی یم . غوښتنه یې وکړه د بېکسۍ د مجلا د ترتیب اجازه ورکړی شي .

ــ د مکلفیت سرکاتب څه ځواب ورکړ ؟

ــ د مکلفیت سرکاتب تندی ورته تریو کړ او د هغه تقاضا یې رد کړه ، لیکن قانوني او معقول دلیلونه یې نه درلودل . خو بیا یې هم یوه دوسیه ورته واچوله او د سرکاري تلکی لومړی بنسټ یې کېښود . حقیقت دا دې چې اسلم په دې باره کې کوم تقصیر نلري او سر بېره پر دې هغه یو وتلی چاپ انداز دی ، ښه ژبه او ښه ځواني لري ، په اندراب کې مشهور شوی دی ، په هره قشخانه او کور کې د ده قصې کېږي ، هر بزکش او پهلوان د ده په مخکې راروان وي . د ارزو ، ده سلا او بنو ملکان یې پخپله مېړانه او بزکشۍ پرځان باندې مین کړیدي . حتی هغوی د ده په مخکې حکومت ته راځي ، ورته واسطه کېږي او ملاتړ یې کوي .

ــ خیر نو زموږ مصرفونه ، خوارۍ ، زارۍ او دا ښکته پورته منډې څه شوې ؟

ــ دا پر ځای دي ، نه ضایع کېږي . همدا پرون د ولسوال صاحب د زوی سنتي وه ، د حکومت ټول مامورین او د شاوخوا سپین ږیري یې ډوډۍ ته رابلـــلي وو . ولسوال صاحب په مېلمستیــا کې په جهر سره

د ټولو تر مخ وویل چې باید خامخا د ملک شاسوار او اسلم تر مینځ روغه وشي او د اسلم عریضه دې دعوا او دنګلو ته ونه لوېږي .

د ګلک په ګردي کوچني مخ کې چې پر توره ببره ږیره او کور په شویو بریتونو راچاپیر شوی و ، د تمسخر مسکا وځغلېده، په رنجو تورې شوې مرۍ سترګې یې په ځارنوال کې خشې کړې . د توتکۍ غوندې کمکۍ خوله یې خلاصه کړه او ځارنوال ته یې وویل : ښه ، ښه دا نو د ملک شاسوار او اسلم تله او تول سره برابر شول . لچکان له معززینو سره سیالان شول . همداسې ځارنوال صاحب !

د ځارنوال رنګ واوښت ، سپوږمې یې ورپېدې ، غوښتل یې ګلک ورټې او تریخ ځواب ورکړي خو د ګلک د سوغاتونو او رشوتونو د سرې چینې اوبه پې توی شوې او د ده خوټېدلې سینه یې سړه کړه . یوه شېبه غلی شو ، په خپل هیجان یې غلبه وکړه او بیا یې په نیولی آواز وویل : ګلکه دا خو په ملک شاسوار باندې د حکومت مهرباني ده چې دی یې له اسلم سره برابر تللی دی کنه حقیقت خو دا دی چې ملک شاسوار د اسلم نجل خرڅه کړې ده ، د هغه پلرنی او نیکنی کور یې تباه کړی او د هغه کرونده یې غصب کړې ده . هغه ته یې په ټیټه سترګه کتلي او له نرخ او دود نه یې ایستلی دی . که موږ د قانون په اساس رفتار کړی وای . باید شاسوار مو توقیف کړی او زولانه کړی وای . لیکن موږ د هغه عزت وساته . هیله کوو چې ملک صاحب په دې خبره پوهېدلی وي .

د ګلک خوله پدې خبره د تمسخر په توګه یوه او بله خوا وتښتېد ه او په مکار پوسخند کې یې ځارنوال ته وویل : کورمو ودان ، زوی مو لوی ، خو دومـــره عرض به وکړم چې ملک شاسوار هم ستاسې په

خدمت کې لنډون ندی کړی ، نغدې روپۍ یې لاړې ، د چنارونو ځنګل یې خرڅ شو ، شولګرې کروندې یې خرڅې شوې ، د بزکشۍ آس یې له لاسه ووت او نن سبا به ژرندې او د کور باغچه هم خرڅه کړي ... زه دومره وایم چې رحم ښه دی ، خدای پې خوشحالیږي .
په دې وخت کې ګلک د جزا سرکاتب ته مخ ورواړاوه وې ویل : څنګه سرکاتب صاحب بد خو به مې نه وي ویلي ...؟

د جزا سرکاتب وویل : زه به څه ووایم ، موږ خو تر اوسه پورې د ملک شا سوار کومه ځواني نه ده لیدلې .

څارنوال د ګلک په وروستیو خبرو وپړسېده او غوسه ورغله ، وې ویل : نن دې د ملک شاسوار روپۍ ډېرې پر مخ راوتپلې . دا د تا ګناه نه ده . دا زموږ ګناه ده چې پورته مو کښنولې او پخپلو اوږو مو سپور کړې . پرون به دې ملکانو ته چلمان ډکول او د جلب رقعې به دې په کلیو ګرځولې ، اوس دې حاکمان وپېژندل ، سپین چکمن دې واغوست او بالا نشین شوې ...

ــ خدای دې وه څارنوال صاحب ، خطا وتې ، زما په مطلب غلط پوه شوې ، زه خو د تا د پښو خاورې یم ، زه چېرې او سپین چکمن چېرې . دا خو تا سې په اوږو راواچاوه . زه که په اندراب کې په تا سې ناشکري وکړم خدای به رانه بېزار شي .

ګلک له ویرې هیجاني شو ، د لاسونو له خوځولو او د مځکې له ډبولو او قرآن خوړلو له زوره یې لنګوټه ول ول په غاړه کې راړنګه شوه . د لاسونو ګوتې یې پرله پسې پوړېدلې او د څارنوال د خبرو په مینځ کې ورننووت ، قسمونه یې یادول ، عذر او زارۍ یې کولې او خدای یې شفیع کاوه : خدای ته ګــوره په ما رحـــم وکړه ، زه د تا د خپګان او

غوسی زور نه لرم ...

ـ گلکه موږ د بدو خلک نه یو ، موږ حرامې پیسې او حرام مال نه خورو ، موږ کله پسې درغلي یو چې را شئ زموږ جیبونه را ډک کړئ . دا خو ته یې چې د حکومت په مامورینو پسې کوڅه په کوڅه او غار په غار گرزې ، په عذر زاریو او ننواتو روپۍ ورکوې او قسمونه ورسره اخلې چې پلانی صاحب دامې در بخښلي دي . او لکه د مور شودې درته حلالې دي .

گلک له غاړې نه ړنگه شوې لنگوټه راخلاصه کړه ، په ځمکه یې وویشته او بیا یې خپله چکن خولۍ له سره راواخیسته ، په غبرگو لاسونو یې څارنوال ته ونیوله او په ژړغونې آوازیې عذر او زاریو ته زور ورکړ : څارنوال صاحب ! دې سرتور سر ته مې وگوره ، ومې بخښه، نیت مې داسې نه و ، خوله مې غلطه شوه ، پښې به دې ونیسم . ناغه به درکړم ،که به زما نیت تا سې ته خراب وي له ایمانه دې خلاص شم . ټکه دې را باندې ولوېږي ، دواړه مې دې خطا شي، ړوند دې شم، گونگی دې شم او د محشر په ورځ دې د پاک رسول له شفاعت نه بې برخې شم .

ـ چوپ شه مکاره زه تا قرآن خور پېژنم ، تر پرون پورې دې دصیاد د خلکو خره پوول او د تورې چرگې په وینو دې کوډې کولې اوس د کونډو رنډو په وینو ملا گل‌رسول شوې او آسمان ته دې د کبر زینه کېښوده . ملک‌شاسوار دې په بدیو اخته کړ ، کلړه دې ور په شا کړه . د هغه شته دې پخپله وخوړل‌اوس خیرن او کرغېړن لاسونه زموږ په سپینو جامو پاکوې ، دې ته دې څوک نه پرېږدي . د دې کبر ځواب به دې درورسېږي . وایي د مېږتون چې ورکه را شي وزر با سي.

ــ زه وجدان لرم صاحب ، زه به څنګه د تاسې نوم بدوم ، خدای دې د بدو وس نه راکوي ...

ــ نه ، ته وجدان نه لرې . که تا وجدان لرلای حسن کلته چې دآسونو د غلا کولو په تور بندي دی په اسلم باندې به دې نا حقې شاهدۍ ته نه اړ کاوه . تر تا خو د هغه غله ایمان هم قوي دی . هغه ما ته وویل : زه خو غل یم لیکن دومره بې ایمانه نه یم چې په باتورو او مېړنیو زلمیانو باندې نا حقه شاهدي ووایم . تر تا خو د خاواک د رحیم داد ایمان هم قوی دی چې د اسلم وژل یې درسره و نه منل او ستا په شنو لوټونویې ناړې تو کړې . تر تا خو هغه کسان چې لارې وهي او جیبونه لوټي هم ښه دي ، بېګناه او مظلوم انسان خو نه وژني او ښاغلیو ځوانانو ته خو تلک نه ږدي .

له ګلک سره د څارنوال د شور په وجه د بنو د بازار ټول دکانداران د سماوار مخې ته راټول شول او په حیرانتیا یې رډ رډ هغوی ته کتل . مازیګرینو دوړو او د وریځ آسمان د لمر لویدو غمجنې موسقیې د ګلک د زړه برجونه د نامیندیو د تیارې په څپو کې یو پر بل پسې ړوبول، خدا زده بلهې اخیستونکی څارنوال چا او څنګه دې خبروته هڅولی ؤ ؟

اسلم د مهردل په مشکي آس سپور د وزلوبې د میدان له کېڼ لورې رانноوت او په ځغاستویې ځان د میدان په څنډه کې د یوې ځانګړې ولې سیورې ته ورساوه او پلی شو . هغه د وزلوبې موزې او برزو اغوستی او پې پاسه یې سمنګانی قاقمه په ګل سیب دسمال تړلې وه له راښکته کېدو سره سم یې د آس تنګونه وسپړل ، زین یې دوباره سنبال کړ او تنګونه یې له سره وتړل . مشکي لکه وړی لېوه د وزلوبې د آسونو د ګلې پرلور غوړونه څک کړي وو او پرله پسې ششنېده او پښه یې د ګواښ په توګه په ځمکه ځمکه وهله .

اسلم کرار کرار د مشکي پر غاړه ، سینه او ساغریو لاس راښکوده او هغه یې د وزلوبانو په خاصه طریقه نازاوه ، نندارچیانو اسلم ولید او دلاس په اشارویې یو بل ته وروښود. یو وار ټولو نندارچیانو له خوشالۍ څخه نارې کړې : اسلم دی ، اسلم ! اوس به لوبه توده شي .

په اندراب کې وتلیو بزکشانو ته دواقعي قهرمانانو په سترګه ګوري . ښه چاپ انداز د کلي، کور او د ټولې سیمې ویاړ وي . معمولاً دغه اتلان چې پهلوانان نومول کېږي د اخلاقي خصایلو په لحاظ د عالي معیارونو لرونکي وي . زړورتوب ، جسمي قوت او ښکلا ، نارینتوب او په ملګرتیا کې ځان تېرېدنه د دوی نه بېلېدونکي صفات دي . خلک له خپلو اتلانو سره ، د کلیو له دې ساده او سپېڅلو سپرو سره د زړه له کومي مینه کوي . هغوی لمانځي او همدردي ورسره ښکاروي . وزلوبه یعنې مېړانه ، جسارت او اخلاقي برتري . د پېغلو لپاره له پهلوانانو او پېژندل شویو چاپ اندازانو سره مینه او واده کول د ژوند ستر ارمان دی .

معــلم جمعه لا وختي د اندراب له ښارنوال سره چې د وزلوبې یو

لېوال ؤ ، د نندارچیانو په مینځ کې په یوه لوړه پوله باندې ځای نیولې ؤ، څارنوال له هغه څخه د وزلوبې د تاریخ په باره کې پوښتنې کولې . معلم جمعه د خبرو په لړۍ کې وویل : د چاپ اندازانو کارنامې او د په هغوی پسې جوړې شوې قصې د لرغونو اساطیرو غوندې د خلکو په تخیل او حافظه کې پاتې کېږي ، سکښتل کېږي او د نسلونو په تداوم کې تشخص پیدا کوي او د خلکو د کلتور برخه گرزي . ښايي چې دا لوبه د تاریخ په ډېرو لري کلونو کې د جنگي تمرین په توگه د سرتېرو سپرو لپاره رامینځ ته شوي وي . دا چې تکړه سپروته پهلوانان وايي له همدې مطلب سره اړخ لگوي . وزلوبه پدې وجه هم د خلکو محبوبه لوبه ده چې په هغې کې د انسان رزمي ملکه او اخلاقي ښکلا وده کوي او انسان پرځان باندې ډاډه کېږي . هره وزلوبه خامخا یو ستر یا کچنی قهرمان زېږوي . خلك دغو قهرمانانو ته د مکافاتو لپاره پخپله حافظه کې ځای ورکوي او هغوی په مجلسونو او قومي جشنونو کې ستايي . د خلکو په حافظه کې د هر سپاره او پهلوان د پاتی کېدو موده د هغه په همت او مهارت پوری اړه لري . څوک یوه میاشت ، څوک یو کال ، څوک ډېر کلونه او یو نیم د تل لپاره د خلکو په ستایونکې وجدان کې پاتی کېږي . د کوز صیاد اسلم په دې وروستي گروپ کې دی . ښه آس او روغه ځواني د ښه بخت او نیکمرغۍ نښه ده . هغه څوک چې پر سرکشو آسونو قبضه کولای شي پخپل نفس باندې هم حاکم کېدای شي . همدا سې دي دچاپ اندازانو په هکله د اندراب د خلکو نگېرنې .

لوبه ورو ورو همدلته د ده سلا په سهیلې سیمه کې پیل شوه، ځینو سپرو لومړنۍ ځغاستې پیل کړې وې او لوبه د لرو او برو اندرابیانو

د سیالۍ په وجه خونړۍ شوې وه . په لوبه کې د معمول په خلاف دجنګ جګړې فضا رامینځ ته شوې وه. په بزکشانوکې یود بل د غورځولو ، د رکاب وهلو او د قمچینې د ګوزارونو تېرى او تکل پېل شوى و . د آسونو د منډو دربى او د قمچینو خرپهار ، د وزلوبانو چیغو او زور آزموینې ، وزلوبې ته د لرغونو جګړو بڼه ورکړې وه . برى تل د پیاوړو دى ، داسې پیاوړي چې زړه یې په مبارزه کې نه ریږدي او ژوندیې دمینې ، مېړانې او هوډ په لمر تود شوى وي . اسلم لا د مشکي له سنبالولوڅخه نه‌و وزګار شوى چې جبار د وزلوبې له قورې څخه د ده په لور راوځغلېده .اسلم د رکاب له ټینګولو څخه سر د جبار په لور راپورته کړ او په مسکاییې هغه ته وویل : میدان څنګه دى ، د لوبې سروالان څوک دي ؟

ـ میدان ښه نه دى ، د وزلوبې پر ځاى وهل ټکول پېل شویدي .

ـ برې د چا په لوري دى ؟

ـ لورى نه لګېږي ، انډیوالان تا ته سترګې په لار دي .

ـ قاسم ، سکندر او نظر چېري دي ؟

ـ یوه شېبه وړاندې راورسېدل ، تر اوسه ښه نه دي تاوده شوي .

ـ اسفندیار چېرې دى ؟

ـ هغه لا پخوا لوبې ته ورګډ شوى دى . لیکن د قورې په څنډه کې ځغلي . ځان هوسا ساتي . ښایي ستا مقابلې ته به سترګې په لار وي .

ـ د چا آس ځغلوي ؟

ـ څښتن یې نه پېژنم ، جګ سمند آس ، د مخ دوه پښې او څنې یې تورې دي . ما په پخـــوانیو وزلوبو کې چېرې نه و لیـــدلى ، ښایي

د درې خانانو به له بغلان او یا نهرین څخه راوستی وي خو عجیبه دا ده چې دی په هره لوبه کې یو نوی سمند پیدا کوي .

اسلم د زین او تنګونو د سنبالولو کار ګړندی کړ ، د مسکا روانه څپه یې د سترګو په څېرمو او شونډو باندې وچه شوه ، سترګې یې په څارونکې توګه جبارته ورواړولې او ویې پوښته : د درې خانان هم دلته دي ؟

ــ هو همدلته دي ، چاپ اندازان یې د بر اندراب د وزلوبانو په ملاتړ کې زموږ له انډیوالانو سره ډغرې وهي .

ــ ښه ښه دا نو د مهردل خبره رښتیا شوه ؛ خانان پرته له دې چې موږ یې ولمسوو خپله لاره ، لوری او برخه لیک یې له ملک شاسوار سره وتړل . د اسلم په مخ او سترګو سوروالی پیدا شو،څېرمې یې وریږدې اوپه څېره کې یې دهیجان او غوسې کرښې وغځېدې. ده ته دغه عارضه دفاریاب په سفر کې ور پیدا شوې وه او دنا پېژندل شویو روحي علتونو په وجه به له یوه وخته تر بله وخته ورپیدا کېدله .دی به په دې حالت کې له خپل طبیعي او ساړه مزاج څخه و ووت ، دانتقام او بر لاسي روحیه به یې پیدا کړه .دا حالت که څه هم په ده کې کم دوامه او تېرېدونکی و خو لکه دڅور دمیا شتې با ران او برېښنا د ده ا را ده به یې غوسې او داحساساتو غبرګون ته سپارله . ګوره چې نن په ده څه وسول چې دجبار دخبرې په اورېدو همدا حالت ور پیدا شو. ده تېره تېره جبار ته وکتل، بې له دې چې پښه په رکاب کې کېږدي د زین په کوبۍ یې لاسونه ټینګ کړل او په یوه ټوپ پر آس سپور شو او په همدې وخت یې په لوړ آواز هغه ته وویل : زه کسات اخلم ، زه د چا د رحم او عدالت تږی نه یم . مشکي ته یې پونده ورکړه ، او شګـــلنه ځمکه یې تر پښو لاندې په منډو شوه ، هغه

بېواکه په زين کې راتاو شو ، مخ په نندارچيانو يې چېغې کړې : اې خلکو تاسې دې خبر ياستئ  زه کسات اخلم  او لکه برېښنا د وزلوبې گرداب ته ورشېوه شو .

سوړ او مدبر اسلم تود او بېباکه شو . لکه آسماني تندر پر قوره راپرېووت او په هماغه لومړني يرغل د قورې مينځ ته ورننووت ، مشکي په سر او پښو اچولو ، په ميل ميل د رېدو او د وليو په ټکرونو لکه توفاني بېړئ د آسونو په څپو کې د ورغومي لور ته وربهېده او خپل سپورېې د آزموينې او مبارزې درشل ته پر مخ بيوه .

قاسم له ورايه اسلم وليده او نظر پهلوان ته يې اشاره وکړه چې د اسلم کېڼ اړخ ونيسي او خپله يې هڅه وکړه چې له ښي لورې له هغه سره ځان غبرگ کړي او په ورغومي باندې د قاسانو د مظفر د يرغل په وړاندې خنډ شي .اسلم دوه ځلې ورغومی جگ کړ خو د وزلوبې له چکئ د وتلو لارې پيدا نکړه .

هوا توده وه او باد نه چلېده . په سپرو او پهلوانانو باندې د خولو لښتې راروان وو . اسلم له دوو کوششونو وروسته په داسې حال کې چې د تندي‌له گرژالو يې وينې رابهېدې د وزلوبې څنډې ته راووت . له آس نه راکوز شو ، آس يې د کلي يو هلک ته وسپاره پخپله ورو ورو ديو لښتي اړخ ته چې پې د پاسه د ولو څو ببرې ونې ولاړې وې راغی ، د سر او مخ وينې يې ووينځلې ، بيايې له خپلې غاړې تاو شوې گل سيب دسمال راخلاص کړ او د وزلوبانو په خاصه طريقه يې پر سر باندې وتاړه . په‌دې کې قاسم او د شاوخوا کليو څو تنه وزلوبان په اسلم راټول شول . اسلم هغوی ته وويل : اوس به شپبه وروسته د صوفی محی‌الدين کـــرنگ هم راورسېږي ، د خـــوشدرې د شامراد

تورق آس هم زموږ په ملاتړ رارسېږي . د صوفی محی الدین آس د ارزنگانو نظر پهلوان ته ورکړئ . تورق دې قاسم وځغلوي . دپشیانو محمد مراد پهلوان هم حاضر دی چې د ملک شاسوار او خانانو د وزلوبانو په مقابل کې زموږ د ملگرو ملاتړ وکړي .

قاسم په ځواب کې اسلم ته وویل : محمد مراد به دا ځل ستا ملا ونه تړي ، ځکه چې دی او د درې خانان د اندراب د برې سیمې خلک دي او داندراب د ویش په اعتبار دوی ټول د کوزنیو په مقابل کې سره یو دي . که په بنو کې هغه ستا ملا وتړله ، هلته خو په وزلوبې کې د لر او بر مقابله نه وه ، ته او ستا ملگري د ملک شاسوار سره مخامخ شوي واست ځکه خو د پهلوان محمد مراد لپاره دا روا وه چې د تا ملا وتړي لیکن نن به دا ملاتړ ورته سخت وي .

ــ د تا خبره خو سمه ده لیکن ما تېره اونۍ په هغه باندې ډېرې خوارۍ کړیدي . بیا فرض کړه چې هغه له موږ سره کوم اغیزمن ملاتړ ونکړي دومره خو به شي چې د هغوی له ملاتړ نه لاس واخلي .

ــ خدازده ، خدازده .

ــ نه نه خامخا !

ــ ننۍ وزلوبه زموږ د انډیوالانو لپاره یوه مهمه آزموینه ده . نن د لومړي ځل لپاره د ملک شاسوار او د برې درې د خانانو په وجود کې زموږ لر او بر دښمنان یو لاس زموږ مقابلې ته راوتلي دي . که یې موږ دلته مات کړو بیا مو نه پسې پرېږدي . د تورې چرگې ملا تېره ورځ د صوفی محی الدین زوی ته د بنو په بازار کې ویلي وو چې اسلم څه لري یو قاسم او څو تنه نور لنډه غر بزکشان ، دا دروازه به هم اسفندیار بل سبا د ده سلا په وزلوبې کې پې وتړي . زه نن دلته دتورې

چر گې د ملا د خبرې په معنی پوه شوم .

ــ څنگه پوه شوې او په څه شي پوه شوې ؟

ــ په دې پوه شوم چې ملک شاسوار له تا سره د مقابلې په‌مقصد د برې درې له خانانو سره خپل اختلاف او خپگان لري کړي دی او نن په گډه سره د تا ماتولو ته دلته حاضر شوي دي . که ته له ما سره دا خبره منې چې په نننۍ وزلوبه کې زموږ انډیوالان ماتېږي ،نو راشئ چې دا لوبه پخپل لاس ماته کړو .

ــ څنگه به یې ماته کړو ؟

ــ جنگ جگړه ، وهل ټکول به پیل کړو . که دې خوښه وي څو ډزې به هم وکړو . ما خپله تومانچه‌راوړې ده !

اسلم په ځیر ځیر قاسم ته وکتل او په داسې حال کې چې غبرگه قمچینه یې په دواړو لاسونو کې اړوله او په سترگوکې یې د تعجب مسکا پیدا شوه ، دا فسوس په توگه یې سر کښېښو او ښۍ خوا ته وخوځاوه او وې‌ویل : نه قاسم خانه موږ وزلوبه د شر په لوري نه بیایو . دې لوبې ته راغلیو نندارچیانو یوه میاشت‌هغې‌ته انتظار ایستلی دی . زیاتره زموږ د لوبې په شوق دلته راغلي دي ، په حقیقت کې دغه وزلوبه د ټولو خلکو لوبه ده ، موږ ته مناسب نه دي چې د ځان دمصلحت لپاره د خلکو د ننداري حق تر پښو لاندې کړو . موږ یوائې یوه لاره لرو ، هغه دا ده چې په مېړانه او زړورتیا خپل ټول کوشش سرته ورسوو او په کلکه په خدای باندې توکل وکړو .

ــ نو گواکې ستا یقین دی چې ورغومی به باسو ؟

ــ داسې نشم ویلای ، فقط په خدای پورې تړلې ده چې چا ته د برې توفیق ورکوي .

په دې کې له قوري نه سکندر پهلوان مخ په اسلم را وڅغاست او چې رانېږدې شو آس يې ودراوه او د بزکشانو په لوړ آواز يې وويل : اسلمه څه ته ګورې ؟ لوبه سخته شويده ، انډيوالان تا ته سترګې په لار دي .

اسلم سم د لاسه په آس پښنه واړوله او هغه يې مخ په قبله ودراوه ، لاسونه يې پورته کړل : خدايه زه ستا په تکيه ځغلم ، زما منګولو ته قوت او زما زړه ته باور ورکړه ، ما په دې کبرجنو او ظالمانو باندې بري ته ورسوه . اسلم مخامخ د قوري په لورې وځغلېده او د خلکو پاملرنه يې ځان ته راواړوله . په همدې دې وخت څارنوال د ګلک دڅورولو په هدف په هغه غږ و کړ :ګلکه ورته ګوره ، ورته ګوره د دميدان خوند او رنګ يې څرنګه بدل کړ . څنګه د آسونو چکۍ شلوي او لکه پړا نګ د ورغومي پلو ته وردانګي ، مشکي ته ګوره، مشکي ته چې لکه تور ښامار هر شی تر سينې لاندې ماتوي او پر مخ ښويېږي .

ګلک چې نفرت او حسادت يې په سترګو کې ځپې وهلې د خپل لنګوټې شمله چې لمر ته يې سپر کړې وه ، له مخ څخه لرې کړه، څارنوال ته يې وويل : دا تاسې ياستئ چې له موږ ک څخه زمرى جوړوئ . کنې چېرې اسلم او چېرې د ملک شاسوار سره د هغه سيالي!

ــ ګلکه متې او ملونه د خدای داد دي ! که د دې واک زموږ او ستا سې په لاس کې وای اوس به د وخته په کوم مير او ملک باندې پلورل شوي و .

په دې کې د ننـــدارچيانو شـــور بګت جوړ شو ... هله هله ...

شاباس ، مه يې پرېږده . معلم جمعه چې د سپرلو او پهلوانۍ ډېر شوقمن و، د ننداړچيانو په مينځ کې ودرېده ، بېواکه په کوکو سر شو ...
اسلمه ، اسلمه ! خدای ستا په لور دی .

آسونه لکه د لوړو ځخه راځوړند شوی سيلاب په اسلم او مظفر پسې چې سره ترازو سوي وو ، راځغلېدل . اسلم او مظفر په يوه استقامت د ننداړچيانو ليکو ته نيږدې شول او په داسې حال کې چې د ننداړچيانو کتار په شا مات شو ، اسلم په يو چټک او لنډ ځرخ کې مشکې د ځوړ په لوري راوګرځاوه او په دې کې د پهلوان مظفر آس کاواک شو ، په کېڼه ډډه راپرېووت او په پهلوان باندې راواوښت .
اسلم ورغومې د هغه له لاسه ويوست او ننداړچيانو احساساتو په جوش کې نارې کړې : آفرين ، آفرين بارک‌الله اسلمه ... ته د اندراب مالګه يي... ته زموږ بخت يي ... ته زموږ ستوری يي .

بزکشي روانه وه او موازنه شېبه په شېبه د کوز اندرا ب په ګټه بدلېدله . د بنو ، صياد ، کشناباد او پلخا خلک له خوښۍ نه په جامو کې نه ځايېدل ، هغوی د بري او وياړ احساس کاوه . هېڅا بې هيجا نه نشوی منلای چې د کوز اندراب نرم او مهذب خلک د بر اندراب پر ځيږ و او جنګي خلکو باندې په داسې يوه خونړۍ وزلوبه کې برلاسی پيدا کولای شي . اسلم په همدې ميدان کې د نرمو او مهربانه بزګرانو او د عاشق پيشه او هنر خوښوونکو خلکو د اميد او وياړ سپور دی .
ټولو خپلې هيلې په ده پورې تړلې دي . دنګې غاړې ، پراخې سينې ، مضبوطو مټو ، روښان عقل او مهارت هغه له نورو وزلوبانو ځخه ممتاز کړی ، اوږدو مصيبتونو او د سفر خواريو د بري او افتخار درشل ته راوستی دی . ډېر کسان هيله کوي چې د ده په ځېر وای . د کلي بلهې

خواره ، ملکان او هغه بدسولی خارنوال هم د دې آرمان کوي چې د اسلم غوندې د خلکو د تحسین او آفرین وړ وای .

لمر په غرغېره و چې اسلم په خولو کې لوند خیشت له قورې څخه پخواني دمه ځای ته راوګرځاست ، مشکي چې له خولې څخه یې سپین ځګونه بادېدل په جګ سر او وتلې سینه خپل سپور د ګڼوولیو سیوري ته راورساوه . اسلم د زین کوبۍ ونیوله . ښي پښه یې کېڼ لورته تر زین راواړوله او بیایې د آس له شا څخه په غبرګو پښو ځمکې ته راودانګل. ننداره‌چیانو له شاوخوا ورته رامنډې کړې او آس یې ځینې ونیو . اسلم سمدلاسه د مشکي تنګونه سست کړل او یوه زلمکي ته یې وسپاره چې په دې نیږدې شاوخوا کې یې وګرزوي او دمه ورکړي ، پخپله د ګوتو او منګولو د ګرژالو او زخمونو په تړلو او پټۍ کولو بوخت شو . په دې کې جبار د ننداره‌چیانو له لوري راغې سلام یې واچوه . اسلم د سلام ځواب ورکړ او هغه ته یې وویل : جباره ته لاړ شه وګوره چې د دې نیږدې کلي کوڅې، د کلي بل لور ته وتلې دي که نه ؟دکوڅو شاوخوا کسان پوه کړه چې په کوڅو کې بې ځایه ونه ګرزي ، ځکه کېدی شي چې چاپ‌اندا زان په همدې کوڅو ور وځغلي او د کوڅو لاروي د اسانو تر پښو لاندې شي .

اسلم لا له خپلو زخمي ګوتو او منګولو سره بوخت و چې قاسم په کنځلو کنځلو کې د توروق په سپرلۍ راورسېد ، اسلم له هغه نه په ورین تندی پوښتنه وکړه : شیر بچیه بیا چا ته کفري او عاصي یې ؟

ــ د پشيي درې کشپ ته ، هغه ستا قسمي او قرآني پهلوان ته .

ــ پهلوان محمد مراد ښیي ؟

ــ هو ، هماغه د پنبې پهلوان ، هغه له تا سره خپل لوظ مات کړ او

سم دم د درې له خانانو سره ملګرى شو .

اسلم وخندل او په خندا خندا کې يې قاسم ته وويل : دا خو ستا په ګټه ده ... له دې خبرې سره سم په چرت کې لاړ . له يوې لنډې شېبې وروسته يې سر راپورته کړ او په سړه سينه يې قاسم مخاطب کړ : محمد مراد نارينه او په لوظ ولاړ سړى دى . ليکن دى د درې له وزلوبانو سره قومي اړيکي لري ، مړى ژوندى يې له هغو سره شريک دى . نشي کولى چې د قوم له نرخ او دود څخه ووزي . په تېره په دې وخت چې مظفر ژوبل شو او د درې وزلوبان له پهلوان محمد مراد پرته بل مشر نه لري . يوه بله خبره دا چې د درې د بزکشانو خوا ته دمحمد مراد درېده به زموږ د انډيوالانو او هغوى تر مينځ د جنګ جګړې د احتمال مخه ونيسي . محمد مراد د درې د خانانو او زموږ دملک ګوتې په ناجايزو مقصدونو پوه دى او د اوبو خړولو ته به وخت ورنکړي . خو په دې شرط چې زموږ هلکان بې موجبه ترخولې تېر نشي او چا ته پلمه په لاس ورنکړي ، ټول انډيوالان پوه کړه چې د کنځلو او پېغورونو پر ځاى زور په متو او ځغاستو واچوي ، زه او پهلوان نظر ورغومي جګوو ، نور انډيوالان دې زموږ شاوخوا ونيسي او د دغه نيږدې کلي پر لور دې زموږ د ځغاستې او يرغل لاره هواره کړي .

ــ ولې د کلي لاره ؟

ــ د ورغومي ايستلوته تر دې بله مناسبه لاره نشته .

ــ آيا دا به له خطره خلاص کار وي ؟

ــ هو ، ما په دې باب خپل چرت وهلى دى . فقط په همدې لاره وزو او ورغومى صياد ته باسو . اوس ميدان زموږ د آسونو تر پښو لاندې دى . وروسته آسونه ستومانه کېږي او ملکان کولاى شي څلور

پنځه هوسا آسونه قورې ته راورسوي .هغوی وروستي یرغل ته چمتو کیږي او موږ باید دوی غافلګیره کړو .

ــ موږ هم عبدل پهلوان ، لعل خان ، وهاب ، جمال الدین ، آدینه او پردل پهلوان هوسا ساتلی دی . هغوی به ټکرې وهي او قمچینې به چلوی ، حریفان به ټکوي او لار به خلاصوي .

ــ دغه انډیوالان میدان ته ننه باسه ، په مطلب یې سم پوه کړه، زموږ یرغل دخدای په هیله پیل کېدونکی دی .

قاسم د میدان پلوته وځغلېده . اسلم د مشکي خواته راغی او د هغه تانګونه یې سر دوباره مضبوط کړل ، سپور شو ، مخ په قبلې ودرېده او خپله همیشنۍ دعا یې وکړه او ورپسې د دوړې پر لیکه میدان ته ننووت او لکه همیشه د ورغومي محل ته پر مخ لاړ . لوبه توده شوه ، د قمچینو خرپهار ، دنندارچیانو چیغو ، د سپرو کنځلو او دآسونود شخړې ګرداب ، میدان ته نوی خونړۍ بڼه اوجنګي تودوخه ورکړه . مشکي د آسونو په چرموړل شوې څرخېدونکې دایره کې په غبرګو غبرګو جګېده او په یوه دوراني حرکت کې ورغومي ته ورنیږدې کېده . اسلم پر آس باندې هیبت کاوه او د حریفانو زیاتېدونکې فشار د هغه پرمختګ سختاوه . د ورغومي لپاره مبارزه دحریفانو تر مینځ ورو ورو په واقعي پهلوانۍ او جنګي شخړې باندې بدله شوه ، ورغومي د سمندر پهلوان لاس ته ورغی ، هغه د برې درې یو نامتو بزکش و او دې لوبې ته د خانانو په ملاتړ راغلی و . پخوا تر دې چې اسلم ورغومي ته ورسېږي ، نظر پهلوان له سمندر سره له چپ لوري ترازو شو . د قورې دایرې شونډه وکړه او د بر اندراب بزکشانو سمندر ته د آزاد میـــدان پلو د آسونو کـــــوڅه ورکړه . اسلم ورغـــومي ولید چې

د ده مخالف لوري ته په‌مخه شواو د نظر پهلوان په خرپيلي سر باندې د درې د سپرو د قمچينو باران جوړ شو . چيغې يې کړې : نظره آفرين ټينګ شه ، ګوره چې درنه خلاص نشي ،مشکي لکه ليونی اوښ کيڼ او ښي لورته خوله اچوله او لکه جنګي ببرې په سينه يې يرغل کوونکې څپې شا ته تمبولې او د آسونو په درياب کې يې پرمخ لامبو وهله .

نندارچيانو ته د دوړو او خاورو له مينځه دوه ترازو شوي سپاره راڅرګند شول . د هغوی شور او ځوږ وچت شو ، ټول پخپلو ځايونو کې په پښو ودرېدل . ترازو شويو وزلوبانو يو بل ته ټکانونه ورکول، چيغې يې وهلې او بې مفهومه الفاظ يې له خولې راايستل . سمندر ورغومي په تقم کې نيولی و او په پسته خاوره کې مخ پورته د نندارچيانو کتارونو ته ځغاست . نظر پهلوان د آس ملونه پرې يښې وې او په دواړو لاسو په تقم شوي ورغومي پورې نښتی و . آسونو لکه وږي ليوان تر سخوابنتو پورې خولې خلاصې کړې او په ګړندۍ منډه کې د نندارچيانو د کتارونو پر لور وروځغستل ، د خلکو په هيجان او شور بګت کې سمندر او نظر پهلوان پر نندارچيانو ورننوتل ، کتارونه مات شول او خلک شاوخوا ته وتښتېدل . په ترازو شويو حريفانو پسې جوخت د وزلوبانو لښکر راورسېد او د هغو په کيڼ او ښي لورې راوڅرخېد ل . نظر د مبارزې په جوش او بې خودۍ کې د اسلم آواز واورېده : نظره پام کوه چې درنه خلاص نشي ، آس له کيڼ لوري په ځوړه راوګرځوه .

نظر پهلوان په زين کې راکوز شو او د وجود په موازنه يې د آس مخ راوګرځاوه . داسې ښکارېده چې د صوفی محی الدين کرنګ شېبه په شېبه د سمندر پر آس باندې برلاسی مومي ، ګـامونه يې پراخېدل او

چټکتيا يې زياتېدله په راځيدوکې يې د سمندر آس پر ځان راوڅرخاوه او خپل مسير ته يې برابر کړ ، نظر پهلوان درې واره پرله پسې ورغومي وڅانده په دريم وار سمندر له آس سره په ځمکه رانسکور شو . ليکن ورغومي يې خوشې نکړ . نظر د سمندر له لاسه د ورغومي د شکولو لپاره په آس هيبت وکړ ، آس پر مخې په دوو زنګنو نسکور شو او مخ په وړاندې په ځمکه وښوييده او ورپسې د بزکشانو ځپه راورسېده او ورغومي يې تر ډله‌ايز يرغل لاندې ونيو .

وزلوبې ته هوسا سپاره ورننوتل ، دواړو خواوو ، هم د لر اندراب او هم د بر اندراب سپرو بې کچې تکل پيل کړ . ملك شاسوار او د برې درې خانانو له يوه لورې ، اسلم او د هغه يارانو له بل لورې خپل برخه ليك او د ژوند فال د لوبې په انجام پورې وتړل . د ورغومي ايستل ګواکې برې ته رسېدل او پر دښمن غلبه کول . آسونه ميلول او يو پر بل خېژول ، په چوړکيو باندې د تانګونو ، روستاړو او ملونو پرېکول ، په رکاب او قمچينو باندې يو د بل وهل ، د سرونو او پزو ماتول ، کنځا ، سپکې سپورې او پيغورونه دا ګرد سره د وزلوبې ملګري شول . ميدان د آسونو او پهلوانانو په ګرداب بدل شو ، لوبه د پياوړې مټ او زورور آس ده . څو څو واره ورغومی په ميدا ن راوګرځول شو ليکن هيڅا ونکړی شو هغه د ځان کړي او له دې ميدان څخه يې د لرې آزادو کليو لور ته چې د ګټلو شرط و ، وباسي .

پهلوان نظر درې ځلې د بر اندراب له وزلوبانو سره ترازو شو . او په دې توګه يې د صوفی محی‌الدين کرنګ آس ستر شهرت او لوړې بيې ته ورساوه . ده نن په رښتيا بې سارې لوبه وکړه . اسلم لا تر اوسه خپـــل ورستی تکـــل او يرغل نه‌دی پيـــــل کړی . يوازې يې يو وار له

اسفندیار څخه وچت شوی ورغومی وشکاوه او خپلو وزلوبانو ته یې په لاس ورکړ .

ننداړچیان د ننني خونړۍ لوبې تر اغېزې لاندې راغلي دي او د رواني لوبې په میدان کې د بر لاسو وزلوبانو او په ځان باندې اسونو دپایلې لیدو ته لېواله دي . وزلوبې او سیمه ایز سپورتونه څومره چې دسیالۍ اودښمنۍ په زهرو لړلي وي ، هماغومره په خلکو کې هیجان او لېو التیا پیدا کوي. گوره څوک به دې بختور برې ته ورسېږي ؟ لوبې خو تل دومره هیبتناکې او خطري نه وي . ننني لوبه خو خورا نادره لوبه ده ، داسې خو په کلونو کې کوم وار برابرېږي . په همدې لوبو کې واقعي قهرمانان دخلکو قبول ته رسېږي .خلک که څه هم په وجداني لحاظ دانصاف پلویان دي لیکن په عمل کې دبریالیو شاته ولاړ وي . گوره څوک به نن دې بختور برې ته ورسېږي .

.ملک شاسوار په یوه یرغه کرنګ باندې سپور ، د وزلوبې دمیدان په لمن کې ښکته پورته ځغلېده ، په خپلو پلوي سپرو باندې یې چې دلمر تودوخې او دوزلوبې تکل تړي کړي او ستومانه کړي وو، د څښاک د اوبو پتکونه او منې ویشلې . هغوی یې هڅول او ستومانه آسونه به یې وربدلول .

د ننداړچیانو بر سر ، په یو لوړ ځای باندې څارنوال له مهردل سره ناست و . مهردل په گلک باندې ملنډې وهلې او څارنوال ورته خندل . د ننداړچیانو زړونه بوگنېدل او پیاوړو چاپ اندازانو ته یې لکه اسلم پهلوان ، نظر پهلوان ، محمد مراد پهلوان ، سمندر پهلوان او استاد پاینده ته سترگې غړولې او باور یې درلود چې په دغو کسانو کې به کـوم څوک ورغومی ، د وزلوبې له میدان څخه آزاد کړي او برې ته

به ورسېږي . دغه باور او انتظار د اسلم پهلوان په باره کې چې د اندراب محبوب او په ټولو کې وتلی بزکش و، د لوبې په بهېر کې کمزوری شوی و . هغه دفاعي حالت غوره کړی و ، ورغومي ته نیږدې کېده لیکن د پخوانیو لوبو په خلاف د تعرض او حملې خوا ته ډېر نه ورتېرېده . دوه ځله کله چې اسفندیار د سمند آس په سپرلو او د برې درې د بزکشانو په مرسته ورغومی جګ کړ ، اسلم د وخت له ضایع کولو پرته د قورې له دایرې څخه د هغه د وتلو مخه ونیوله او هغه یې په سترګو کې پوه کړ چې ده ته به د ویاړاو برې لار ورنکړی شي . د اسلم سترګې خوني شوې وې . هغه اسفندیار ته نن بل ډول کتل ، خدازده څه پېښ شول چې قاسم له قورې څخه را وځغاست او د میدان په څنډه کې نندارچیانو ته نیږدې ملک شاسوار ته راورسېده او له رارسېدو سره سم یې ملک تر قمچینو لاندې ونیو . د نندارڅو سپرو تر مینځ د جنګ جګړې او قمچینو بازار تود شو . په دې کې ګلک د څارنوال ګریوان ته لاس واچاوه او په کوکو کوکو یې هغه مخاطب کړ : وګوره څارنوال صاحب پخپله قاسم دی ، دا ټول فساد له ده څخه راپیدا شو ، همدې، دی چې پر اور باروت شیندي ، خدای پاردی لچکان مشرانو او د عزت خاوندانو ته لاس وراچوي .

بل پلو په همدې شېبه کې وزلوبه دومره توده شوی وه چې څارنوال د ملا ګلک خبرې نه اورېدې او له خپلو ټولو حواسو سره د سپرو په لوبه کې دوب ؤ . لاسونه له لاسونو ، متې له متو ، رکابونه له رکابونو او آسونه له آسونو سره ونښتل . اسلم چې له مخ او څټ نه یې د خولو رود روان و او سترګو یې د وینو رنګ اخیستې و ، آس د ورغـــــومي سر ته راورســـــاوه او د آسونو په غوبل کې لــکه باز په

ورغومي ورغوته شو او په یوه حرکت یې هغه تر تقم لاندې ټینګ کړ، مشکي ته یې ببدریغه پونده ورکړه ، هغه په غبرګو ودرېده او د آسونو له دایرې څخه د وتلو لپاره یې په وړاندې ودانګل . انډیوالانو د تور مشکي سپاره ته کوڅه ورکړه او نندارچیانو تور مشکي چې په تندي یې سپین ستوری ځلېده ولیده چې په ډېره چټکتیا د ځغلنده آسونو له چکۍ څخه راووت . هیجاني شویو نندارچیانو یو ځای او یوه خوله چیغې کړې : آفرین ، شاباس نام خدا ، سل رحمته ، زر رحمته ...

مهردل له ډېرې خوشحالۍ څخه د آسونو مخې ته ورودانګل خو تور لیوه لکه بربښنا د هغه په وړاندې تېر شو او د خلاص لوري په استقامت یې منډه تیزه کړه . اسلم د خپل ښي لاس په لور وڅرخېده . د برې درې وزلوبانو د بنو او صیاد لویې لارې ته د مشکي دوتلو مخه ونیوه ، اسلم په سرعت کېڼ پلو راتاو شو او د نظر پهلوان او بازمحمد په ملاتړ ببرته د میدان په لور راوګرزېده. په دې کې سمندر او اسفندیار غوړ په غوړ راورسیدل . سمدلاسه د اسفندیار او بازمحمد آسونه سره ټکر شول او د ټکر له زوره دواړه په ځمکه ولګېدل . اسلم مشکي د میدان څنډې ته نیږدې کړ او د وزلوبانو د انتظار په خلاف د ګلابو د بوټو پر شنه دیوال باندې چې د وزلوبې د میدان او کروندګرو ځمکو تر مینځ حایل و ، مخامخ ورغی او لکه مرغه له دیوال څخه هغه خوا واوښت ، نظر پهلوان لار اوږده کړه او د اغزیو د دیوال، له شا نه راوڅرخېده . خو سمندر اسلم تعقیب کړ او بې ځنډه د اغزیو له شنه دیوال څخه پسې ور واوښت . اسلم له دیوال څخه هغه خوا په یوه لنډه فاصله کې ، یوه سوره ور لښتي ته ورسېده او بې ځنډه له هغه څخه هغه خوا والووت . خو د سمنــدر آس د لښتي هغې خواته و نه رسېده او له

ځنلهې څخه ببر ته دلښتي مينځ ته په شا راولوېده . اسلم مشکي دکلي لارې ته سيخ کړ . نظر پهلوان او له هغه نه په کمه فاصله کې وروسته د سپرلو ډله پسې راځغلېد له . مشکي په بيړه د کلي په نرۍ کوڅه ننووت . وړاندې په کوڅه کې، له يوې خلاصې دروازې څخه ناڅاپي يو ببر سری کوچنی ماښوم په منډه د اسلم مخ ته راووت ، د دې پېښې په ليدو د اسلم ويښتان ځيږه شول او د وجود ټول رګونه يې وبرېښېد ل . خدای يې ياد کړ او له ښي پلوه ځمکې ته ورځوړند شو او هغه کوچنی يې د سترګو په رپ کې پورته کړ . وړاندې د کوڅې په ګاونډ کې يو ټيټ بام چې د رشقې پولۍ يې انبار شوې وې راڅرګند شو . اسلم بې له ځنده ماشوم د بام د پاسه د رشقې د پوليو منځ ته ورګوزار کړ . او ورپسې د تنګې کوڅې د تاو راتاو او کږلېچونو څخه تېر شو ، پراخې او هوارې ځمکې ته وووت . هغه صياد ته د رسېدو کرښه سيې کړه او د برې په لومړي احساس کې يې وليدل چې هلته لرې د ختيځ پلو د هندوکش پر څوکو او کمرونو باندې د غوټه غوټه سپينو وريځو چترۍ پلنې شوې وې .او ښکته د درې په اوږدو کې دلرې کليو چمبرونه او برجونه داوړي د هوا په خړه لړه کې تاو شوي وو . له پټيو او پولو څخه تود تاو راجګېده او د ده ستومانه او ځپل شوی اندامونه يې ټوکر کول . مشکي لکه د هوا مارغه په لوړه او ژوره الووت او لکه تور سيلاو په پولو او پټيو ور اوښت . ورپسې د صوفی محی الدين کرنګ د نظر پهلوان په سپرلو د هغه ليکه تعقيبوله .ځمکې دا سونو منډې او د وزلوبانو ميړانې ته غبږ پرانستې وه او صياد د وياړ او برې پر لور لار پرې کوله .

د غنمو بوره پټي د پوړیو په څېر د ده سلا له لورې مخ په کوز اندراب یو په بل پسې څوړند شوي او غځېدلي وو . اسلم په شاړو ، بوره او یوې شویو ځمکو باندې د بنو ، د لویې لارې په استقامت ځغلېده او لکه د هوا مارغه په لوړه او ژوره الووت او له پولو او لښتیو څخه اوښت . شا ته یې له کېڼ لورې نظر پهلوان د صوفی محی الدین د آس په سپرلو د مشکي استقامت تعقیباوه او ور پسې دصیاد نورو زلمیوزلوبانو په دوی پسې را ځغاستل. ځمکې پیاوړو سپرو او الوتونکو آسونو ته غیر. خلاصه کړې وه . پولو او پټیو پرله پسې د آسونو تر پښو لاندې منډې وهلې او په ولاړه توده هوا کې د لو شویو کروندو په پراخ تېر باندې د مشکي او کرنګ د منډې د دوړو دوه ثابتې کرښې د ده سلا د وزلوبې له میدا ن څخه د منځوي صیاد دباغونو او چنارونو سیورو ته ور اوږدې شوې . اسلم او نظر پهلوان په ځغاستو د ملک یوسف د با غ په پرانستې دروازه را ننوتل ، ور پسې د صیاد دزلمیو سپرو ډله را ورسېده او په با غ کې دننه دخوښیو شور او دوزلوبانو ګڼه ګوڼه پیل شوه .په دې کې ناڅاپي د مهردل د کور دروازه خلاصه شوه او دښځو له یوې ډلې څخه یوه پېغله چې مخ او متې یې په وربښمین ټیکري کې نغښتي وو، په او چتو ګامونو مشکي ته را نیږدې شوه ، دهغه دتندي سپین ستوری یې چپ کړ او دهغه په پیکي کې یې یو وربښمین دسما ل چې دپاسه یوه کونډه شوې طلایي سکه چې دښځینه ګاڼې په تو ګه په شتمنو کورنیو کې دود وه وتړومبله. په دې مهال یې ټیکری له سرڅخه په ولیو را وښویېده او پخپل ښایست یې دټولو زړونه ولړزول.وزلوبانو مخونه واړول او نجلۍ بېرته ټیکری په سر او وېښتا نو را وغوړاوه ،دپړونې پیڅه یې خولې ته ونیوه په داسې حال کې چې پر مېـــږوې تړلي ذاتي سخونـــــدر ته یې اشاره کوله په اسلم کې یې ستـر ګې

خښې کړې ، هغه ته یې وویل:زما مور وایي دغه سخوند ردمشکي پښو ته حلال کړئ او دمشکي سوی یې په وینو ورنګوئ . دایې وویل ، بېرته یې دکور په لور منډه واخیسته او په دروازه کې دښځو په ډله ور ننوته .

ځلور ورځې وروسته ، دصیاد وزلوبانو د ده سلا په ستونځمنه لوبه کې د خپل بې ساري او بې پخوا بري په ویاړ دملک یوسف په باغ کې،دسین پر غاړه دګورو ونو او څېرو تر سیورو لاندې ، دخوښۍ بنډار جوړ کړی و

د ملک یوسف چوتره د گیس د څراغونو تر رڼا لاندې ډوبه شوې وه . د بزکشانو شور بگت او خنداوو د باغ په چاپېریال کې انگازې کولې .

مهردل او دهغه ورونو مېلمنو ته چلمان نیول او چاینکې یې وربانديې وېشـــــــلې تر روښـــانه څراغونو لاندې چې د ونو په جگو څانگو کې راځوړند شوی وو د چنارونو او غوزانو سیورو د کلا په دیوالونو او د باغ په رغولي باندې رنگارنگ او زړه ورونکې نقشونه جوړ کړې او باغ ته یې جادوگره ښکلا وربخښلې وه . د کلا د سهیل پلو، چوترې ته مخامخ د مېلمنو آسونه تړلي وو . کله کله به آسونه یوبل ته ششنېدل ، په غبرگو غبرگو به یې یوبل ته گوزار ورکړ او د وزلوبانو مرکه به یې اخلال کړه . چنارونو ، نري شمال ته پاڼې شرنگولې او له سیورو څخه راپیدا سویو تصویرونو کې یې پرله پسې بدلون راووست . له ستورو ډک آسمان ، د غرونو ابهت او د سین سرود د مهردل مېلمستیا ته خاص برم او درنښت ورکړي و . مهردل د تېرې چارشنبې د وزلوبې خاطرې وریادولې او په مزوکې اوړېده رااوړېده . مشکې د ده شمله نیغه کړې وه او په اندراب کې یې ده ته ستر شهرت گټلی و . اوس دی د هغه آس خاوند دی چې ساری یې په اندراب کې نشته . ښایي یو دوه کاله وروسته په ټول قطغن کې شهرت ته ورسېږي . مهردل له ځان سره وویل ما هم سپېتانه نه ده ورسره کړې ، درې کلن ژیړ سخوندر مې په پښنو کې ورحلال کړ او ټولې سوې مې د هغه په وینو ورنگولې . گاځرې او هگۍ په وربشو کې وراچوم او تر ټولو زیاته دا چې د اسلم غوندې وتلې او بې سارې سپور مې ورته پیدا کړیدې . ته خو گـــوره څنـــگه د اغزنو گلابو پر دیوال راواوښت ، له

سوره ور لښتي څخه يې ودانګل او په کوڅه کې دننه يې د ماشوم هلك نه لاره پاکه کړه او ورغومي يې د وزلوبې له لېوانو څخه خپل کړ او په صياد کې يې زما د نامتو پلار ملك يوسف دروازې ته راورساوه، بارك الله اسلمه ، آفرين مشکي ، مهردل لا د خپلو خوږو خاطرو په کوڅوکې زنګيده رازنګيده چې قاسم د قاقمې ځنډې ته لاس ورواچاوه او وې ښانده : ګوره مهردله ستا خو دې کور ودان وي چې د مشکي د برى لپاره دې دوستانو او يارانو ته مېلمستيا کړې ده . مګر صوفی محی الدين خو بالکل ځان نه ګروي . د هغه آس که ورغومي نه دې ايستلى ، په ميدان کې خو ځغليدلی دی . د وزلوبانو پام خويې ځان ته وراړولی دی .

د قاسم له دې خبرې سره د ارزنګانو نظر پهلوان چې د ده سلا په وزلوبه کې د اسلم مرستندوی ساری و ، په بالښت باندې له يوې ډډې څخه راپه بله شو ، نسوار يې تو کړل او په داسې حال کې چې سترګې يې غټې کړې ، د قاسم په خبرې پورې يې وويل : دا حقيقت لري چې د صوفی محی الدين کرنګ يو ډېر ښه بهن دی . هغه ډېر ځوان دی نور هم ډکېږي او قوت اخلي . که پام ورسره وشي او ښه وساتل شي يوه ورځ به د مشکي ځای ونيسې .

اسلم چې له معلم جمعه خان سره په کومه خبره اخته و ، د نظر پهلوان خبريې پام ځانته ورواړاوه او د هغه پر لوری راولاړ شو ، وې ويل : د صوفی محی الدين کرنګ خو بې جوړې دی . خو که صوفی خپه نشي دغه آس ښه نه ساتي ، په وزلوبو کې د ده کشری زوی هغه ځغلوي او د سيلانيانو د يابو کار ځنې اخلي ، له دې آس سره مناسب دي چې يو چــاپ انداز ورته ونيسي او ويې روزي . په دې کې

نظر پهلوان په خبره ورګډ شو ، وې ویل : د وزلوبې په ورځ ما په وروستي دور کې د اسلم ښي خوا ساتله ، کله چې د اسلم مشکي د ګلابو پر دیوال واوښت ، د صوفی کرنګ پر حائل وانه‌وښت او زه مجبور شوم چې لار اوږده کړم . په دې وجه نیږدې ؤ چې سمندر له اسلم سره ترازو شي خو د هغه آس د کمزورتیا په وجه په لښتي کې راپرېووت .

اسلم نظر پهلوان د خبرو خلاصولو ته پرې نه ښود ، په تلوار تلواریې وویل : هو هو ، کرنګ دا عیب لري . هغه باید په خنډونو څخه د الوتلوپه چم روږدی شي . یوبل عیب هم لري چې په کېڼ لوري لنډ نه راتاوېږي او د راګرځیدو دایره لویوي .

په دې کې جمعه خان معلم وویل : د ده سلا د چار شنبې په وزلوبه کې د ملک شاسوار زوی اسفندیار یو خیالیګر سمند ځغلاوه ، د مخ پښې ، لکۍ او د غاړې ځنې یې تورې ، ونه یې لوړه ، سر یې ښایسته او سینه یې پراخه ... زه خویې ان په لیدو نه مړېدم ، په دې ځای آدینه جمعه خان معلم ته په خبرو کې ورننوت : قصور په آس کې نه و، قصور په سپاره کې و . ده ته په کار و چې کوم زوړ یابو یا کومه بیتله اسپه یې پیدا کړې وای او د یو ننداړچي په مقام کې د میدان شاوخوا ګرځیدلای . ټولو وخندل . اسلم وروسته آدینه ته مخ راواړاوه وې ویل :سمند ښه آس دې او اسفندیار هم واقعي پهلوان دی . لیکن زما په خیال سمند په ځغاسته کې سرعت نه لري او خپل سپور مراد ته نشي رسولای . په منډه او لوبو کې زموږ مشکي ساري نه لري . کله چې له قورې راوزي او مخه ورکول کېږي داسې الوزي چې ته به وایې ځمکه یې مخې ته منډې راوهي . قاسم په خبـــره ننوت : ما ته اسلم هېڅکله

پیاوړی آس نه راکوي . اسلم مخ په قاسم په ګونځو شو ، په شوخی یې هغه په بلهوډو کې وخوخاوه او وې ویل : شیطانه ولې دروا غ وایې ، مګر هغه تورق آس ښه نه و .

ــ نه هېڅکله ، بې له ښکلې ځېرې څخه بل هېڅ کمال نه لري .

ــ ما د خوش درې او فج له بزکشانو څخه د دې تورق په باب ډېر څه اوریدلي دي . هغوی وايي تېزه منډه لري او له خنډ څخه په الوتو کې ډېر مېړني دی .

ــ ما خویې دغه صفتونه و نه لیدل خو دا عیب یې را څرګند شو چې په منډه کې اړخ خالي کوي او کله کله پخپل سر لوری بد لوي .

د شاشان برات پهلوان او د آرزو استاد پاینده چې نوې د صیاد د بزکشانو په ډله راګډ شوي او په مېلمستیا کې حاضر وو د خوشحالۍ او رضایت احساس کاوه . برات پهلوان سخوابنتي او اوږده برېتونه له خوشالتیا څخه شېبه په شېبه د غوږونو پر لور ځکېدل او له خندا ډکه او ویره خوله یې د چاپ اندازانو خبروته له حیرانتیا خلاصه پاتې وه ، داسې لکه خبرې چې د اورېدو په ځای خوري ، سترګې یې د ګیسونو رڼایي او د غالیو او رنګینو بالښتونو ښکلا ته مرۍ مرۍ کېدې ، ده کله داسې د مینې او ملګرتیا ښایسته شپه نه وه لیدلې .

استاد پاینده د صیاد له نورو بزکشانو سره د ده سلا په بزکشۍ کې د اسلم په ستاینه لګیا و ، هغه ویل : له ډېرو کلونو راهسې په دې ارمان وم چې په کوز اندراب کې کوم ستوری وځلېږي . خدای زموږ غوښتنه ومنله ، اسلم یې راپیدا کړ . د هغه په مټو او لاسونو کې یې قوت کېښود ، د هغه پلې یې کلکې کړې او هغه یې د صیاد ننګیالیو او سپېڅـــلو خلـــــکو ته راولېږه . ایماني درته وایم کله چې هغه له مظفر

پهلوان سره ترازو شو ، ما د اسلم زبردستي له ورایه ولیده . هغه داسې ښکارېده لکه پړانګ چې د غره په غوڅه باندې ورغورځار شي او له کړنګ نه یې ښکته وارتوي .

آدینه وویل : د وزلوبې پای ډېر خوندور و ، کله چې مشکي قوره چیرې کړه او د آسونو ګلې نه طاقه شو ، ټول نندارچیان له ایرانتیا څخه په چیغو نارو سر شو او ځای په ځای ودرېدل . مشکي لکه د غرونو تور سیلاو لوړې ژورې تر تتیٔ لاندې کړې په میدان راوګرځېده د اغزنو بوټو پر دیوال واوښته ، خلکو نه غریو پورته شو : سبحان الله ، نام خدا . ما د تورې چرګې ملا ولید چې ویې ژړل ، لنګوټه یې پورته کړه او په ځمکه یې ووهله .

جمعه خان معلم د آدینه خبره واخیسته او هغه یې داسې مخاطب کړ : اوس د اندراب په ټولو کلیو او کورونو کې د هغه ماشوم قصه کېږي چې اسلم د کلي کوڅې نه په ځغاسته کې جګ کړ او له حتمي مرګ نه یې وژغوره . دا یو واقعي معجزه ده تر اوسه د هېڅ سپاره لاس داسې نوی بري ته نه دی رسېدلې . زموږ ولس اوس اسلم تش یو پهلوان او ماهر سپور نه بولي بلکې هغه د خدای یو خاص بنده او فضلي سړی بولي . په دې کې اسلم په جمعه خان معلم باندې غږ وکړ : پرېږده چټیات مه وایه . قاسم خبره په خوله کې وروچه کړه او هغه یې داسې ځواب کړ : ته هم والله عجب سړی یې ، د خدای داد هم نشي سیلای پرېږده چې حقیقت وویل شي او د حسودانو او دښمنانو ورمېږونه او سرونه مات شي .

مهږدل په آدینه او جمعه خان معلم باندې غږ وکړ : شپه پخېږي او زموږ د عمـــــر واټ د ځـــوانیٔ ښکلې موسم ته رارسیدلی دی . راځئ

د دې ښايسته شپې او د ده سلا د برې شکرانه کې د مينې او وفا ترانې وغږوو . هغوی دواړو خپلې دنبورې راواخيستې او غبرگوتې سندرې يې پيل کړې .

ای دخترک سفيدک سکدانه
د پوپک قاش تو شدم ديـــوانه
ديوانه منم خــلق خدا ميـدانه
شايد که ترا نصيب من گردانه

دربـــاغ بودم بوی تو ای بـــاغ آمد
يک گل کندم نـــام تو در يـــاد آمد
يک گل کندم ورق ورق پاره شدای
آبی جــگر سوختگيم به فرياد آمد

عاشق نه بودم تو عاشقانم کردی
من لاله بودم تو زعفـرانم کردی
در خانه به حال خود شيشته بودم
يک گپ زدی به غم نهانم کردی

من آمـــــده يم به ديدن جـــانانه
صد برگ سفيد من برآ از خـانه
صد برگ سفيد من برآ رخصت گير
بـــاز آمدن مـــرا خــــدا ميـدانه

از آمدنت اگر خبر میداشتم
در روی رهت گل سمن میکاشتم
گل میکاشتم که پایت در گل مانی
خاک قدمت به دیده میبرداشتم

دختر دختر تو داغ کردی ما را
صد برگ درون باغ کردی ما را
ما برف سفید بودیم در کوه بلند
افتاو شدی و او کردی ما را

د ساز او سندرو په جوش کې گدامحمد د مهردل بزگر د کلا له لوري په چوتره راوخوت مخامخ مهردل ته ورغی او په غوږ کې یې څه ورته وویل . مهردل له ځایه راولاړ شو جیلکه یې په اوږو راسمه کړه ، پښې یې په پښو کړې او په گدامحمد پسې وروخوځېد . د کلا له مخې تېر شو او مخ د باغ په دروازه د قشخانې انگړ ته ننووت . مهردل د الیکین په رڼا کې ملا سید اکبر له واره وپیژانده . هرکلی یې ورکړ او په مینه یې لاسونه ترې چاپېر کړل او د گېلې په غاړه یې ورته وویل :نو ولې مخامخ چوترې ته نه راتلې . په دې بختوره شپه کې خدای څنگه دلته زموږ گوتو ته راوستې ، راځه زوروره چې ځو .

ــ نه نه زه نشم تلای . ما باید څوک و نه ویني .

ــ ولې خېریت خو دی ؟

ــ ته پخپله چرت ووهه چې په دې نیمه شپه کې څوک د خېریت لپاره دومره لرې راځي .

مهردل د زړه دننه وترهېده پوښتنه يې وکړه :خدای دې فضل وکړي ، حال وایه .

ـ د ماخستن لمونځ تېر و چې مفتی جلال زه ورغوښتم هغه ما ته امر وکړ هم دا اوس فوري صیاد ته لاړ شه اسلم او مهردل خبر کړه چې سبا د بنو د دکانونو د وهل کېدو په فقره کې قاسم او شامراد ، جبار او آدینه ، روزي او گلاب نیول کېږي او یوه یا دوه ورځې وروسته نظر پهلوان د کوم شپانه د قتل په تور باندې چې یوه میاشت وړاندې د ارزنگانو په کروندوکې وژل سوی و ، توقیف کېږي . اسلم ته کوم بل لوی تلک ایښودل شوېدی . مفتی صاحب ویل وروسته به زه په دې باب کې پوره معلومات واخلم او تاسې به خبر کړم . اولسوال مفتی جلال ورغوښتی ؤ . غاښ چیچنې يې ورته کړې وې چې باید له قاضي او څارنوال سره بې ځایه گوتې ماتې نکړي او د اولسوالۍ له نور مامورانو سره په یوه لار ولاړ شي . مفتي صاحب وویل چې ته باید سبایې لمونځ خپل جومات ته راورسوې او لمر خاته ما ته احوال راوړې .ـ مفتي صاحب د څارنوال په باب څه ویل ؟

ـ وروره بلهی اخیستونکې هم چېرې ایمان لري ؟ دا گرد سره لېوان دي او فقط پیسو ته گوري . ملک شاسوار او د برې درې خانانو د دې گردو ایمان او وجدان گرو کړی دی . مفتي جلال یو جلا سړی دی چې نه گروکېږي او نه خرڅېږي . لیکن یو وزری سړی دی ، خدای دې خبر ور پیښ کړي ، سمدلاسه خو د حکومت ټول مامورین ورته یو شویدي .

مهردل گدامحمد ته ورناره کړه چې اسلم راولي خو ملا سید اکبر په بېـــرته تگ باندې زیات اصرار وکړ . هغه ویرېـده که چېرې په

شپه کې ببرته بنو ته و نه‌رسېږي د ده د راتګ راز به رسوا شي او خبره به ورته ګرانه شي . ملا ببرته بنو ته لاړ خو اسلم له مهردل او قاسم سره د هغه له تګ نه وروسته کرۍ شپه هماغلته په قشخانه کې تېره کړه .
اسلم مهردل ته وویل : زه د ده سلا تر بزکشۍ مخکې د محمد مراد پهلوان له خولې خبر شوم چې د درې خانانو ملک شاسوار ته ویلی دي چې اسلم په رشوتونو نشي ورکولای . هغه اوس مشهور شوی او په اندراب کې یې محبوبیت پیدا کړی دی . د مظلومیت قصه او داستان یې هم ټولو ته معلوم دی ، د حکومت خلک اوس هغه ته په آسانه لاس نه وراچوي ، یوازې پښې ورته دربوي او په دې توګه له تا نه روپۍ شکوي او دا د پښو دربی به هم تر هغه وخته وي چې په تا څه بودېږي ، نو ښه او لنډه لاره دا ده چې اسلم له منځه لري کړې او بیا په دغو روپیو چې دا اوس یې لګوی د هغه د قتل داغونه له خپلې لمنې نه ووینځي . په دې کې قاسم را په ګونډو شو ، سترګې یې د ببرو بریتو تر شا رډې رډې راووتې ، د پزې څوکه لکه جغندر تکه سره شوه ، پخوا تر دې چې اسلم خپلې خبرې خلاصې کړي ، په لوړ آواز یې کریغه کړه: وه د خنځیر زویه مګر په قاسم باندې د ګور تبۍ اوښتې وي چې بیا ستا منګولې د اسلم مرۍ ته ورسېږي ، مګر زموږ کلي او کورونه سیلاو وړي وي او موږ د لنګوټیو پر ځای د ملک شاسوار د ښځو ټیکري اغوستي وي چې بیا ته د اسلم په غاړه چاړه تېره کړې .
اسلم د قاسم خبرو کې ورننووت او هغه ته یې په ترخه غاړه وویل : ته یوه شېبه صبر وکړه او خبره تر پایه واوره !
ــ نور د اوریدو ضرورت نشته ، باید له هم دې ځایه مخامخ پې ورشو . کلا یې وسوځوو او زاړه واړه یې تر تیغه تېر کړو .

مهردل راولاړ شو قاسم يې تر زنې ونيو او بيا يې مخاطب کړ : قاسم خانه ! ستا مېړانه او شجاعت خو ټولو انډيوالانو ته معلوم دی ليکن ستا دغه ليونتوب او عصبانيت او دا چيغې او بربنډې خبرې به موږ تر کسات اخيستلو مخکې برباد کړي .

اسلم وويل : قاسم خانه ! پرما خو ظلم شوېدي . زما خو ناموس تباه شوېدي . زه خو په هېڅ توگه له کسات اخيستلو نه پرته بله چاره نه لرم . ليکن بيړه د شيطان کار دی او ستا غوسه او چيغې ښه نتيجه نه لري .

ــ نه نه اسلمه ځان مه غولوه او دا عقل دې نور په سين لاهو کړه . زه برالا درته وايم نور نه درېږم .

اسلم د قاسم په اوږه لاس کېښود او په مخ يې چپ کړ او بيا يې په کراره ورته وويل : که زما خبرې تر پايه واورې ته به قانع شې يو وار مهرباني وکړه وخت راکړه چې زه تاسې په ټول مطلب پوه کړم ، بيا زه حاضر يم چې ستا او مهردل خبرې واورم او عمل پې وکړم . زما خو هم په لرمانه باندې وينې رااوښتې دي . زه خو تر تا زيات د کسات په اور کې سوځم .

اسلم وليدل چې قاسم له جوش او غوسې څخه کېناست تيلې يې چيلم ته وواهه دوه درې لوخړې يې ترې جگې کړې ، بيا يې مهردل ته د محمد مراد پهلوان د خولې قصه داسې بشپړ کړه : خانانو ملک شاسوار ته ويلي دي چې دا اسلم د حکومتي مامورانو په لاس کې لکه دام او تلک غوندې يو شی دی . پدې دام کې اوس ته نښتی يې او موږ وينو چې په موږ هم دا ورځ راتلونکې ده . هغه وخت لرې ندی چې دتا او موږ ټوله شتمني داسلم په دفع شرکې د مامورانو او قاضيانو خېټو

ته لاړه شی او موږ خود بخود د اسلم په مقابله کې ناتوانه او وزر ماتي شو . نو ولې خبره دې ځای ته ورسوو او ولې د لاس غوټه په غاښونو حلاصه کړو . راځئ د یو بزکش آس بیه پې ورکړو او د تل لپاره یې ځان له شره خلاصه کړو . هر کله چې د اسلم سر په خاورو لاړ ، همدې مامورانو او قاضیانو ته به یوه مرداره گوله ورکړو او ځان به له هر ورځنې رشوت ورکولو او د اسلم له پور او کسات نه یو ځای او یو وار آزاد کړو . خانانو ملک شاسوار ته ذمه وهلې ده چې د اسلم د وژلو او حکومت جغات به نیمه په نیمه ورسره پریکوي .

مهردل یوه شېبکۍ په فکر کې لاړ بیا یې له اسلم نه پوښتنه وکړه : دا د محمد مراد پهلوان خبره خو د سیداکبر له خبرې سره سر نه خوري !

ــ برخلاف دا دوه خبرې خو د یو بل استر دي او لکه خښتې سره برابرې دي .

ــ زما خو سر پې خلاص نه شو .

ــ زه به دې سر پې خلاص کړم : ډېر امکان شته چې د درې خانانو او ملک شاسوار خبره داسې سره پخه کړې وي چې د اسلم یاران به په دې او هغه پلمه څو ورځې په حکومت باندې راجلب کړو او په همدې وخت کې به د هغه د وژلو او ورکولو پلان عملي کړو .

مهردل د خبرې تل ته ورولویده ، سترگو یې کوڅې وکړې او له ځان سره یې وویل : ښه ، ښه ، دا خویې پخه لاره جوړه کړې ده .

قاسم ببواکه سره وښوریده او له خولې یې ووتل : مگر صیاد هدېره شي چې څوک د اسلم ویښته بې ځایه کړي . په دې کې یې جیب ته لاس کړ ، تمـــانچه یې راوایستله ، چپ یې کړ او بیا یې ببرته په

جیب ننه ایستله .

مهردل په بریتو کې مسکی شو . بیا یې مخ په اسلم پوښتنه وکړه : داسې معلومېږي چې ملک شاسوار او د درې خانان به ډېر ژر ستا د سر د اخیستلو لپاره گام وچت کړي .

ــ هو زه هم همداسې اټکل کوم .

ــ سمدستی خو باید له یوازې گرځېدو لاس واخلې ، د کور د ختو کار هم ودروې او په پټ ځای کې استوگنه غوره کړې .

ــ هو دا هم یوه خبره ده ، لیکن په دې تدبیرونو له خانانو او ملکانو څخه نه خلاصېږم او بیا د یوې ورځې کار نه دی . زه چې د حق خاوند یم ، د پټېدو په وجه به خپل حق بالکل له لاسه ورکړم .

ــ نو ته د ځان د ساتلو لپاره څه لوری وینې ؟

ــ زما لوری روښانه دی .

ــ مثلاً هغه روښانه لوری څه دی ؟

ــ بربنډه مقـــــابله او د اندراب د قومي نرخ سره سم د پور او کسات اخیستل .

ــ په کومه طریقه او د چا په زور ؟

ــ همدا پوښتنه ده چې باید ځواب ورته پیدا کړو . زما په خیال موږ کولای شو په خلکو تکیه وکړو .

ــ لیکن خلک د دښمنۍ او جگړې ډگر ته نه درسره راوزي .

ــ ما ته د خلکو ښه نیت او تائید بس دی .

ــ که چېرې د خلکو ښه نیت او تائید ستا درد دوا نکړي بیا څه کوې ؟

ــ که له مـا سره انصاف و نه شي او زه بله لاره پیدا نه کړم ، زه

به یاغي شم . همدغه خلک چې ما دریاد کړل ، دوی به ما وساتي او خپله ډوډۍ راسره وویشي .

داسلم په دې خبره د قاسم دوچولی غوټې اوبه شوې . بریتونه یې د موسکا په څېو کې سره لاړل او د لومړی ځل لپاره یې په زوره زوره وخندل او وې ویل : آفرین اسلمه بارک‌الله ، د نر زویه اوس دې سمه لار پیدا کړه .

ــ قاسم خانه وروره ! ته لږ نور هم تکیه شه ، ستا د مېړنیو خبرو وار به هم راورسېږي .

مهردل مخ اسلم ته وویل : زه څو ورځې وړاندې دې نتیجې ته رسیدلی یم چې ملک شاسوار ، د تورې چرګې ملا او د درې خانان پر تا باندې ګوزار ته‌تیارشوي‌دي . د ملا سید اکبر او محمد مراد پهلوان له خبرو ښکارېږي چې موږ ته ډېر وخت او مهلت نه دی پاتي . لیکن له پېښې سره د مقابلې لپاره زه کومه ډاډمنه او روښانه لار نه وینم .

ــ قصه آسانه ده سبا چې د حکومت ماسلان په قاسم دوی پسې راشي ، ماسلان به جواب کړو او پلمه به ورته وکړو چې هلکان نن د ارزنګانو پلو بزکشۍ ته ځي او په هېڅ‌وجه نن ولسوالۍ ته نشي درتلای . بل سبا ته به د قاسم له خور سره د نظر پهلوان د پښارتی په خاطر د بزکشۍ لوبه جوړه کړو او په دې توګه به دوه ورځې وخت پیدا کړو ، په دې دوو ورځو کې به ته په‌اولسوال ، څارنوال او د څارندوی په قوماندان لاس راوکاږې او بریتونه به یې ورغوړ کړې . موږ به آوازه واچوو چې کابل او بغلان ته مو عریضې لېږلې دي او د باز خواست غوښتنه مو کړیده . ته پخپله هم د حکومت مامورینو ته خبرداری ورکړه چې اسلم په کـــابل کې د المپیک له رئیس سره رابطه

پیدا کېږده . او په ملک شاسوار او د درې خانانو یې عرضونه کړي دي . سمدلاسه به دغه اقدامات وکړو ، وروسته به بیا سلا مشوره سره وکړو وبه گورو چې خدای څه کوي .

مهردل له ژور فکر نه وروسته سر راپورته کړ ، لاس یې اسلم ته را اوږد کړ او وې ویل : لاس دې راکړه خبره دې لکه مرغلره په زړه کېناسته ، گوره چې هلکان د حکومت له ماسلانو سره لاړ نشي . دا عجب وطن دې ، دلته د کمزورو او مظلومانو غږ نه اوریدل کېږي ...

قاسم د مهردل خبره په مینځ غوټه ماته کړه ویې خندل او وې ویل : دا وار دې د نر خبره وکړه ، اسلم ته به هغه وخت غوږ ونیول شي چې کبر په کبر جواب کړي ، دپه دې کې مهردل له ځایه ولاړ شو خپل څادر یې وڅانډه او درې واړه له قشخانې څخه د چوترې لور ته راغلل ، شپې خپله وروستنۍ شومه سر ته رسوله او سپېدو نوې نوې خپلې نازکې شونډې د غرونو په غومبرو ایښودلې ، آدینه او جمعه خان معلم د شپې د لمنې په وروستې برخه کې د مینې او هجران ناویلې سندرې را نغښتلې :

د سبزه نشین ، که سبزه گلزار من ای
سر تا سر سبزه منـــزل یـــار من اي
هر جـــا که روی درخت پر گل بینی
اون گله نکن ، که صورت یار من ای

دریـــا جـــاله میان دریـــا جـــاله
بشکستـه سر چنـــــــار پنچاه ساله
بشکستـه سر چنـــار افـگارم کرد
عشق دختـــر مـردم په این حالم کرد

جـــانانه بهـــار خرمی را چه کنم
من بیتو حیات او زنده گی را چه کنم
مـــردم ای خـــدا عمر دراز میطلبن
من عمـــر دراز غمقتی را چه کنم

د دوست محمد اکا د کور په خوا کې سین ته نږدې چوانې دیگونه بار شوی وو . د کوز صیاد ځوانانو د محمد نظر پهلوان د پښارتی په خوښۍ کې ګډون کړی و . هلته د جومات په پوښل شوې برنډه کې د نږدې کلیو رابلل سوي مېلمانه او د هغوی په بر سر کې د جلب ځو تنه ماسلان ناست وو .

د اندراب د ښوونځیو معلمانو ، د بنو خزانه‌دار محمد عمر خان ، د پشیي درې محمد مراد پهلوان د جومات په انګړ او د بیالی پرغاړه ، پر نیالیو باندې ونو ته ډډه وهلې وه . یو کهنه ګې ماسل چې په صورت مزی او په خپل کار کې ماهر ښکارېده له برنډې راولاړ شو ، خپل کمربندیې وتاړه ، خولۍ په سر سمه کړه او مخامخ مهردل ته راغی : اربابه په موږ باندې ناوخته کېږي .

ــ خیر خدای به هر څه آسان کړی ، ته راوښیه چې له قاسم نه پرته ، نور څوک ستا په رقعه کې شامل دي .

هغه یو چرموړل شوی ، سولیدلی کاغذ له جیب نه راویوست : دغه دی ... قاسم خو د سر سړی دی . ورپسې د منځوي صیاد سکندر ، ارسلا د ترکاڼ زوی او د کوز صیاد ګلاب، روزی ، امیر محمد بهرام ، آدینه او د صوفی محی‌الدین زمن ... په ارزنګانو کې محمد نظر پهلوان او یو څو تنه نو .

ــ دومره ډېر ولې راغي ياست . د دې اساميانو د بولو لپاره خو يو ته بس وې !

ــ قصه لکه چې لويه ده . ملک شاسوار په قاسم باندې عريضه کړې ده چې د ده سلا په وزلوبه کې يې د ملک بې عزتي کړيده . د جزا سرکاتب لا دا هم ويل چې د بنو بازار وهل شوی دی او په دکې د کوز صياد د هلکانو لاس دی .

ــ ته څه فکر کوې ، آيا زموږ هلکان به رښتيا په دې غلا کې شريک وي ؟

ــ زه به په دې کې څه ووايم ، موږ خو د حکم تابع خلک يو ، آمران وايي رايې ولئ ، او موږ يې ورولو .

په دې کې مهردل رقعه د ماسل له لاسه واخيسته قاسم ته يې نارې کړې : ما چاپ اندازانو ته يو څو وريښميني جيلکې رانيولی دي . يوه ډېر مزداره يې حوالدار ته راواخله . په دې کې مهردل جيب ته لاس کړ پنځه سوه روپۍ يې راوايستې په موسکا يې لاس د خوالدار په لور وروغځاوه . حوالدار ستګې د رضايت په توګه موسکۍ کړې او مهردل ته يې وويل : بده به نه وه ملکه که پنځه سوه دې نورې د جلب ضابط لپاره راکړې وای .بيا به زموږ کار هم آسان شوی و او څلور پنځه ورځې به مو د هلکانو جلب ځندولې و .

ــ ګل خبره دې وکړه . مهلردل دا وويل او جيب ته يې لاس کړ ، پنځه سوه نورې يې د حوالدار په رغوي کې کېښودې .

صوفی محی الدين چې د غاليو بالښت ته يې تکيه وهلې وه مخ په مهردل راولاړ شو او هغه ته يې وويل : زه غواړم چې اسلم دې نن زما کرنګ وځغلوي . بالکل دې وځغلوي .

ــ مشکي به ځنګه شي ؟

ــ مشکي به محمد نظر پهلوان ته ور کړو .

ــ اسلم به دا ومني ؟

په دې کې اسلم چې د صوفی محی الدین شا ته غلې دریدلې و په لوړه خندایې وویل : خامخا په یې ومني . د زړه په اخلاص به یې ومني .

صوفی محی الدین د دې خبرې له اوریدو سره په اسلم ورمنډه کړه . هغه یې په غیږ کې ونیو په سترګو یې چپ کړ او زیاته یې کړه : ته زموږ فخر یې ، ته د کوز صیاد توره او مټ یې ، ته زموږ حقیقت یې . هغه له ډیرې خوشحالۍ نه سور واوښت او ژر ژر یې په ږیره لاس راتیر کړاو په خطاب کې اسلم ته خبره داسې اوږده کړه : اسلمه دښمن بیا درپسې راپورته شوی دی . خو موږ هغه د پروسږ کال ویده خلک نه یو . زموږ ملاتړ درسره دی ته کولای شي تاوان په ځای کې پر ما غږ وکړې .

اسلم صوفی محی الدین ته کورودانی ووایه او زیاته یې کړه : ما ته د ملک شاسوار ، ګلک او د برې درې د خانانو له لوري لویه سپکه راورسیده ، هغوی زما کور ، زما هستي او زما عشق له ما نه واخیستل زه یې په مړو وشمیرلم . ما غوښتل مخامخ خپل کسات واخلو ، خو دلته د صیاد د مشرانو او خیر خوښوونکو خلکو ، زما په تودو مغزو باندې سړې اوبه تویې کړې او زه یې روغې جوړې ته راضي کړم ، لیکن په خپله په دې کلي کې ولیدل چې څوک له ما سره روغه جوړه نه کوي او ما خپل سیال نه بولي او دا لا څه کوې اوس زما په قتل او نابودۍ پسې ګرځي . زه د اندراب مشرانو او د دې ځای حکومت ته د خپـــل پور او حق په باره کې په وار وار ودریدم خو هیڅا زما پوښتنه

ونکړه او زما د لړمانه په لمبو یې اوبه را نه شیندلې . د اسلم د غضب او غوسې تودوخه مخ په زیاتیدو شوه . په غټو ښایسته سترګو کې یې د کسات برېښنا خوره شوه ، ژبې یې لکنت پیدا کړ او باړخوګانویې سوروالی راووړ .

مهردل د اسلم په خبرو ورننووت : اسلمه دا خبره نوره پرېږده ، نن د دوست محمد اکا په کور کې دا ټولې خبرې پاکوو . ته یوازې او یو وزرې سړی نه سې . ته د ټول صیاد د باناموسه خلکو د غیرتونو او مېړانې شمله یې اوس چې قصه پای ته نېږدې شوې ده ، ته باید چې د غره غوندې سوړ ، دروند او هسک ودرېږې . تا ته غوسه ، ګیله او زیات تودوالې نه دی مناسب او ته صوفی محی الدینه که غواړې له اسلم سره ملاتړ وکړې ، نو له قاسم ، آدینه ، اسکندر او زموږ له نورو ځوانانو سره خپلې متې او منګولې وتړه .

قاسم ګریوان پرانستې او په سوی سا د سین په غاړه د کوز صیاد جومات ته راننووت او په بزآشانو یې نارې کړې : راوزئ سخوندر حلال شوی او د صیاد خلک د وزلوبې میدان ته راټول شوي دي .

د قاسم له بلنې سره سم ټول چاپ اندازان راولاړ شول . اسلم د محمد مراد پهلوان په اوږه لاس ورواچوه او له جومات نه د وتو په حال کې یې هغه ته وویل : نننۍ وزلوبې ته یوازې د بر صیاد ، منځوي صیاد او زموږ د خپل کلي کوز صیاد چاپ اندازان رابلل شوي دي . آسونه هم په خپله د همدې خلکو دي . ته یوازنی چاپ انداز یې چې زموږ له خپلو کلیو د باندې څخه دې ښادۍ ته رابلل شوی یې .

ــ تاسې په دې کې نه یاست غولیدلي چې زه مو خپل بللې یم . زه جسماً د پشه یې په دره کې اوسم لیکن زړه مې له تاسې سره دی .

ــ ستا اصلي ټټوبی د صیاد د چاپ اندازانو په زړه کې دی . موږ نه غواړو چې هېڅکله له تا سره مقابل شو . خو د ده سلا په وزلوبه کې داسې موقعیت راغی چې موږ سره مخامخ شوو . ستا دې کور ودان زي چې زما په معذرت او ضرورت پوه شوې ، مخه دې راکړه او گوتې دې راسره ماتې نکړه .

محمد مراد پهلوان د اسلم په دې خبره په کټ کټ وخندل او هغه یې په تشي کې وڅوهاوه او ورته وې ویل : نه نه هېڅکله ما مخه نه ده درکړې ، تا په خپله توره او مېړانه او د مشکي په مرسته ورغومي ویوست او ټول نندارچیان دې په حیرانتیا کې ډوب کړل .په دې کې محمد مراد ناڅاپي غلی شو د اسلم مړوندیې ونیو او د لارې په مینځ کې یې ودراوه ځیر ځیر یې ورته وکتل او وې پوښته ، څلور پنځه وار د ورغومي د ځغلولو په حال کې تا مشکي د ختو او اغزنو بوټو له دیوالونو واوښتې . هم له لښتی او هم په کوڅه ورغلې ... لاحول ولا هغه وخت چې تا هغه هلك جیگاوه او ورته ټیټ شوې هیڅا باور نه کاوه چې ته به هغه جگ کړی شي .

ــ پهلوانه هغه کار ما په بېخودۍ کې وکړ . دا یو خدایي مدد و چې زما زړه او منگولو ته یې قوت ورکړ .

ــ مشکي لکه د مرغۍ ... قاسم په دې کې د اسلم په اوږه لاس کېښود او په خپلو خبرویې د محمد مراد خبره په خوله کې وروچه کړه : بزآشان یو بل پسې سپاره شول او د بزآشۍ میدان ته ورسیدل ، دغه دی د صوفی محی الدین کرنگ تیار دی .

دواړه یاران غبرگ د وزلوبې میدان ته وروځغاستل . د صیاد سپرو ځـــان په کـــوز او بر صیاد کې وویشه او د منځوي صیاد وزلوبان یې د

انډول د برابرولو لپاره د مسابقې په دواړو ډلو کې سره تقسیم کړل . د ارزنگانو محمد نظر پهلوان د مهردل د مشکي آس په سپرلو د بر صیاد او اسلم پهلوان د صوفی محی‌الدین د شېږ کلن کرنګ په سپرلو د کوز صیاد د چاپ اندازانو په مشرتابه وټاکل شول .

لوبه د اسلم په دعا پیل شوه . خدایه زموږ په هڅوکې برکت کېږده . زموږ په متو کې قوت کېږده . زموږ په زړونوکې محبت کېږده او موږ پر ظالمانو بر کړه .

مبارزه شروع شوه ، که له ورور سره وي که له دښمن سره مبارزه مبارزه ده ، مېړانه او شجاعت غواړي ، محمد مراد پهلوان د نظر لوری ونیو ، اسلم په سکندر باندې غږ کړ : رفاقت رفاقت دی او رقابت رقابت دی گوره چې سیالي خرابه نکړې ... چو چو ، بارک‌الله کرنګ په لومړنیو یرغلونو کې خپله وړتیا وښودله اسلم پوه شو چې کرنګ د ده غوښتنې پوره کولای شي او د هر راز مانور قدرت لري خو افسوس چې له جگو خنډونو او دیوالونو څخه د الوتلو تمرین نلري . اسلم له پخوانی عادت سره سم یې قورې د آسونو کړۍ ته د ننوتو له پیل سڅه ورغومي جگ کړ او هغه یې له کړۍ نه د باندې رتوځغلاوه ، نظر او محمد مراد د هغه مخه ونیوه او ورغومي یې د هغه له منگولو ځخه وشکاوه .

اسلم بیا بیا کرنګ د کړۍ وسط ته ورساوه او حریفان یې وترهول ، هغه نسبت هر پهلوان او چاپ انداز ته برتري لرله . د هغه یرغل ، دفاع او د وزلوبې په کرکتر بتندې پوهیدنه خورا بې سارې وه . هغه د چانس شپبه تر بل هر سپاره ښه تشخیصوله . هغه که څه هم د کرنګ له عالي خصوصیاتو سره بلد و خـــو د ننۍ مسابقې په پیـــــل کې یې هغه

مخامخ وازمایه او ویې لیدل چې د سپاره د فرمان په پوهیدلوکې نیمګړتیاوې لري او د زیاتې روزنې محتاج دی . مشکي د محمد نظر پهلوان سره ښه کار نه کاوه ، هغه د اسلم د سبک او کرکتر سره عادت شوی و . محمد نظر رکاب وهل ، مهمیز کول د ملونو اشاره او د موازینې خصوصیات هغه ته نوي وو او د خپل سپاره غوښتنې یې نشوی پوره کولای . کله به چې محمد نظر پهلوان غوښتل هغه پر ورغومي ورپرې باسي ، هغه به میل کښده او په دې توګه یې خپل سپور په مبارزه کې نامینده کاوه .

لوبه روانه وه . یو ساعت وروسته ټول سپاره د انډیوالۍ له رعایت څخه سره ووتل ، شخړه او د برې لپاره د وزلوبانو خشونت پیل شو . محمد مراد پهلوان له اسلم سره ترازو شو او د یو ښوینډ ځوړ نه دواړه له خپلو آسونو سره ښکته ورغښتل .

وزلوبه غرمې ته نېږدې دومره توده او سخته شوه چې د نندارچییانو په زړونو کې یې ویره پیدا کړه . په سترو او عامو وزلوبوکې زیاتره کمزوري او متوسط سپاره هم ګډون کوي لیکن د صیاد په ننني وزلوبه کښېږدې ګرد سره پیاوړي او ماهر سپاره ګډون لري . دا یو غیر عادې وزلوبه ده ، د دې ګډونکوونکې د صیاد د چاپ اندازانو هماغه ډله ده چې د بنو او ده سلا په خونړیو وزلوبوکې یې د اسلم د برې لپاره لاره هواره کړه . اسلم څو څو وارې په قوره کې نارې کړې چې پخپل مینځي بزکشۍ کې یود بل رعایت خیانت دی . هر یو په ټول قدرت سره د خپل برې لپاره .

غرمې ته نیږدې لوبه پای ته ورسیده ، ورغومي تر پایه پورې په قــوره او میــــــدان کې پاتې شو . هېڅوک برې ته و نه رسیدل لیکن

د محی‌الدین کرنګ د هغه پیاوړي مانور او تیزه منډه د خلکو خولې ته ولویده ، تور غوږ سمند آس چې سکندر وځغلاوه نوې د کوز صیاد قورې ته راغلی و . هغه د خواجه غار نه د بر صیاد محمد رضا نومې میراب اخیستی او اندراب ته‌یې راوستی و . مشکې بیا هم د آسونو میر پاتې شو ، هغه درې واره قوره ماته کړه او طاقه شو لیکن محمد نظر پهلوان د دغه آس په خصوصیاتو ښه نه و بلد ، ورغومي یې نتیجې ته ونشو رسولای .

شپه راورسېده ، ستومانه او پرکاله بزکشان د قاسم د کور په بامونو او انګړکې سره تقسیم شوی وو . د قشخانې په بام باندې د اسلم او مهردل د راز ملګری سره ټول شول . مهردل توره پهلوي لونګۍ له سره لرې کړه ، واسکټ یې ویوست او د هغه له جیب نه‌یې چسترفیلد امریکایې سګریټ راویوست او محمد مراد ته‌یې ونیو . محمد مراد خړې سترګې په سګرټ کې هښې کړې ، په بریتوکې مسکی شو ، لاس یې وروځغاوه یوه پلته سګرټ یې له قطی نه راواخیست ، په ګوتوکې یې سره واړاوه ټکته پورته‌یې ورته وکتل او مهردل ته‌یې وویل : ما لا تر اوسه سګریټ نه دې څکولی .

ــ نن‌یې وڅکوه . د محمد نظر پهلوان ښارته ده ، بختوره شپه ده او له دې سره سم‌یې تیلې ورته ووهه . محمد مراد پهلوان د سګریټ لوګی سینې ته ننه یوست او سم‌دلاسه وتوخېده او په توخنه خوله‌یې وویل : دا په موږ پورې ښه نه دی ، زموږ لپاره هماغه خپل نسوار ...

مهردل له بل جیبه نه د نسوارو کدو راویوست او پهلوان ته‌یې ونیو : واخله دا د خپل وطن په بوټی ځان خوشحال کړه . په دې‌مینځ کې قاسم بام ته راوخوت په ویړه خوله او خلاصه تټۍ‌یې په اسلم‌باندې

غږ کړ : وا وا عجیبه وروري ! ټول کار او روزګار دې ما ته راپرې ایښې دې او ته پخپله دلته ستوني ستاغ د انډیوالانو خوږو مرکو ته پروت یې ، آیا بنفشه ستا خور نه ده او محمد نظر پهلوان حق نه درباندې لري . مېلمانه ، آسونه ، ساز او سرود ، ډوډۍ ویشل دا یوازې په ما پوره کېږي ؟

اسلم را په ډډه شو ، په جبار ، اسکندر ، آدینه او نورو باندې غږ کړ : راځئ راځئ په ما پسې راځئ ! قاسم دې یوه شېبه دمه جوړه کړي .

د انګړ په مینځ کې د کلي شوقي سندرغاړي پر معلم جمعه باندې راټول شوي وو . د دنبورۍ د تارون د تال کړنګار او د زلمیانو ګډو سندرو د شاوخوا کورنو او کوڅو چاپیریال ډک کړی و .

د کلا دننه پېغلې نجونې د بنفشې شاوخوا د سندرو او نڅا په بزم کې راغونډې شوې زې . پېغلو د کوژدو او ودونو په باره کې ، د ناویو د نیک کرغۍ او بدمرغۍ په باره کې ، د نا واده شویو نجونو د پدو مینو او د څېره زلمیانو په باره کې خبرې سره کولې . د مهردل کورنۍ د ښځینه وو په مینځ کې تر ټولو برلاسې مېلمنې وې . هغوی د لومړي ځل لپاره له مینځنی صیاد نه د دوست محمد اکا کورته راغلې وې . صدف د مهردل شپاړس کلنه خور چې د خپل ښایست په وجه په صیاد کې په آهو مشهوره شوې وه له نیلوفر سره چې د نجونو په ټولی کې د بدلو او دریابه وهنو د شوقي او میله یې نجونو میره او مخکښه بلل کېده ، د بنفشې د تخت په اړخ کې په خبره او خند بوخت وه . صدف نیلوفر ته لا پخوا دا راز سپړلی و چې هغه په اسلم مینه شوې ده . لیکن هېڅ لاره او لوری نه ویني چې اسلم ته د زړه راز ووایي . هغې نیلوفر ته

وویل : اسلم واقعي نارینه دی ، عمر یې یو څه پوخ شوی دی او د مینې تودوخه یې لکه بزآش آس رام کړې ده . یوه ورځ مې هغه ته د قشخانې لار ونیوه او په ګل مې وویشت ، مخ یې راواړوه ، ناڅاپي یې ترخه ترخه راوکتل . ما یو وړه سل زړونه کړل پوښتنه مې ځینې وکړه : د تا خندا نه ده زده ؟

هغه وویل : زما د خندا وخت مړ شوېدی او ستا د خندا وخت لا نه دی رارسیدلی . ولې خاندې ؟

ما خپل پړونې پر اوږو وښویاوه او خپل ښایست مې هغه ته وښود . څېې مې په اوږو او سینه راشېوه شوې وې تر زانګنونو مه رسیدلې ، سترګې مې تورې کړې وې او د ځلیدونو مریو لړۍ مې پر ورشښمین ګریوان باندې راپرته وه . زه غلې شوم موسکۍ شوم او د سترګو لوبه مې پیل کړ. په کرار او ژوبل غږ مې هغه ته وویل : زما د زړه آواز اورې ولې ځواب نه راکوې ؟ هغه نور هې□ و نه ویل ، سریې کوز واچوه او روان شو . ما په لوړ آواز وخندل او د کور په لور وتښتیدم . ما هغه وویشت ، هغه به بیا په آرام خوب ونکړي .

نیلوفر خپلې سترګې غټې کړې . آیا دا ټول رښتیا دي ؟

ــ رښتیا دي . یو ټکې هم غلط نه دی .

هغې سوړ اوسېلی ویوست او صدف پوښتنه وکړه : ولې داسې سوړ اوسېلې ؟

ــ ته سکه وایې یوازې ته زړه لرې !

صدف واره د واره په نیلوفر غېږ راوګرځوله وایه وایه ستا چېرې د زړه مارغه بند شوی دی .

ــ تا خــو اسلم پهـلوان زخمی کړی دی ، زه پخپله بل چا په زړه

ویشتلی یم .

ــ څو ک څو ک ؟

ــ یو څو ک .

ــ کوم څو ک ؟

ــ د همدې کور خاوند .

ــ قاسم ښیي ؟

ــ هو ، همدغه . ماښامی د اوبو د راوړلو په وخت کې د دغې کلا په دروازه کې مخامخ ورته ودرېدم ، د تېرېدو لارمې پې بنده کړه . هغه یو څه وارخطا شو . ما غوښتل ورته وژاړم مور مې کوځې ته راپې راوکتل ، موږ وارخطا شوو او د ټکر په حال کې سره تېر شوو . مور مې له هماغې ورځې راباندې شکمنه شویده او ځاري مې .

ــ هو غریبګودی ... مینه او رسوایې سره خویندې دي . مه ډارېږه .

ــ د نورو پېغلو سرګذشت څنګه و آیا دوی مینه نه ده کړې او په پټو سترګو واده شویدي ؟

ــ هو نیلوفر ! د ځینو بلکې د زیاترو نجونو مینه قرباني شویده . بوډاګانو ، معیوبو کسانو او نورو ته په جبر ورواده شویدي . نجونې لکه د پخوا زمانې مینځی د دوپیو او مال په بدل کې خرڅېږي . د بر صیاد د میراب باشی لور کریمه د بنو په اتیا کلن بوډا سید امیر باندې خرڅه شوه ، هغې په هماغه شپه زهر وخوړل او سبا ته یې ځنازه ببرته راغله .

تېرې میاشت د تورې چرګې ملا خپله لور فرشته په دریو بنو باندې د باجګـــــاه ملک ته ورواده کړه . وایي نجلۍ د واده په شپه لکه

لیونۍ داسې وه . کله چې خپلوانو هغه سینګاروله ، هغې ژړل او اوښکو یې لکه تور سیلاو د هغې پر مخ تورې لارې جوړولې ، هغې خپل سر ږمنځ کولو ته نه نیو او ګاڼې یې له لاسونو ، غوږونو او ګوتو نه لرې غورځولې . خدای زده چې په هغې بدمرغې به نورڅه راغلي وي .

زموږ د کلي شپېن ږیري مظفر خان د درې له خلکو نه یوه نجلۍ چې مشنګ نومېده راواده کړه . هغه د غرونو په چاپیریال کې لویه شوې وه . د صیاد په دود دستور نه پوهېده ، کوټې ته به راوته په پولو پټیو به ګرځېده او زیاتر به یې د کور له لوړ بام نه د شاوخوا کورونو او کوڅو ننداره کوله . کله کله به یې په عادي لاریو باندې غږ کاوه او خبرې به یې ورسره کولې په دې کې د هغې د دوو مشرو بنو تبر لاستی پیدا کړ ، هغوی دا په بدکارۍ تورنه کړه او د مظفرخان بدګماني یې پې پیدا کړه . مظفرخان هغه تر ځار لاندې ونیوله کله چې هغې د بام له سره داد محمد پاده وان باندې آواز وکړ او داد محمد لوړ وروکتل او ځواب یې ورکړ ، مظفر چې هلته د ونو په څانګو کې ځار کول سمدلاسه یې د داد محمد پر ټټر باندې د پنځه ډزي کولۍ خښه کړه او پر له پسې له ځار ځای څخه کوټې ته راووت او د ټوپک ټول ججوری یې د هغه په زړه او سینه کې تش کړ . ورپسې کلا ته راوګرځېد ، وریې وتاړه ، د بې دفاع او معصومې مشنګ لاسونه او پښې یې په ځرمینه وتړل ، بیا یې په بوجۍ واچوله او پې د پاسه د چړو باران ورشېوه کړ . صدف چې کله خبره دې ځای ته راورسوله ستوني یې بند شو او په ژړا شوه . نیلوفر وارخطا شوه چې نه وي د صدف ژړا ته د مشرو مېلمنو ښځو پام ورواړي . دریاب یې راواخیست ودریده او په سندر ویلو یې پیل وکړ :

در بـــاغ شما گــل سفید دیــدم
گفتم بکیرم ز بـــاغوان ترسیــدم
نرمک نرمک ز بـــاغوان پرسیدم
گل گرد سرت باغه بتو بخشیدم

ای کوچه روبرو ره سیل کد یارم
رومالچه گلدوزی هوس کد یارم
رومالچه گـــلدوزی دادم یارمه
آمـــدن خانه ما را بس کد یارم

د باندې د کور د انګړ او بامونو د پاسه د زلمیانو ساز او سرود روان و . اسلم او مهردل له محمد مراد پهلوان سره د قشخانۍ پر بام ګوښه شوي او په مرکه تاوده شوي وو . محمد مراد د درې د خانانو او ملک شاسوار ټول رازونه چې له ده سره یې شریک کړی و ، دوی ته یو په یو بیان کړ . هغه اسلم ته وویل : زه هغوی ستا په وژلو مامور کړې یم ، په دې کار کې هغوی ماته په دره کې د پنځه جریبه ځمکې او تېرش زره نغدو روپیو وعده راکړې ده . همدا نن هم چې زه ستاسې وزلوبې او خوښۍ ته راغلې یم ، د هغهوی په سلا او خوښه مې دا اقدام کړی دی . ملک او ګلک دواړه ټینګار کوی چې زه باید ستا تر وژلو پورې تا سره پهوانۍ دوستۍ تعلقات وساتم .

ــ تا له هغوی نه پوښتنه ونکړه چې څنګه او په څه طریقه یې مړ کړم .

ــ په دې باب له هغوی نه لاره ورکه ده کـــــله وایي د بزکشۍ په

مهال د جنګ جګړې پلمه ورته پیدا کړه مخامخ یه پخپله یا د کوم بل بزکش په تومانچه وولـه ، کله بیا وایي د بنو کوم سموار ته‌یه د بازار په ورځ ننه باسه په خوړو کې زهر ورکړه او کله بیا ...

ــ ملک شاسوار خو پخوا غوښتل چې ما ته د حکومت په لاس کومه دوسیه او دسیسه جوړه کړی او د پیسو په زور مې له دې سیمې څخه تیښتي ته اړ باسي او یا دا چې د زندان تورو تمبو ته مې ورکړي . دوی ولې دغه پخوانۍ نقشه بدله کړه ؟

ــ د درې خانانو شاسوار ته وویل اسلم په اندراب کې مشهور ش.یدی . د اندراب د بزکشانو او ټولو ځوانمردانو همدردي ورسره زیاته شوې ده . دا لا څه کوې د سیمې د سپین‌ږیرو ملکانو او حتی د حکومت د مامورانو په زړه کې یې ځتی پیدا کړیدی . نو که چېرې ته غواړي چې هغه جیل ته واچوې دا به د تا ځوله شتمني ختمه کړي او بیا به هم اسلم ژوندی وي او د اندراب ټول بزکشان او ځوانمرده کسان به د تا له دښمن سره لاس یو کړي او تا به د زمان په تېرېدو په تورو خاورو کېنوي . اوس په اسلم باندې ډېر زلمیان راټول شوي دي . هغوی د خپلې تودې وینې او ځوان طبیعت په حکم هغه ته مټ ورکوي . ته له کوم یو سره دښمني کوې او څو تنه په د ولسوال ، څارنوال او څارندویو په مرسته زندان ته اچوې . ده خو چې ټول اندراب هم ستا شي ته د رشوت خورو خېټې نشي دکولای . لنده ، مناسبه او اغیزمنه لار دا ده چې همدا یو اسلم مړ کړه او دا د شر ځاله د تل د پاره بنده کړه . کله چې دې اسلم له لارې لرې کړ دغه د لچکانو او لونډګانو ډله پخپله له مینځه ځي . اسلم به مړ وي او داسې څوک به نه وي چې د هغه کسات اخیستو او پور پسې وګـــرځي او ته به یــوار له دې ټولو

غمونو را خلاص شي . په دې ځای کې محمد مراد پهلوان آواز ډېر کړ او اسلم ته يې د تاکيد په لهجه وويل : اوس يوه شوې چې پخوانۍ نقشه څنگه او ولې بدله شوه ؟

اسلم په ژور فکر کې لاړ ، د عادت پر توگه يې غټې تورې سترگې سره ننوتې لاس پسې په تندي راتېر کړ مخ مهردل ته يې وويل : آيا ملک شاسوار د د درې خانانو به يوازې محمد مراد پهلوان زما وژلو ته تياکلي وي ؟

ــ نه نه ... تېره اونۍ اسفنديار د وسلو له سوداگر ملا محمد رسول نهرين چي څخه يوولس ډزې جرمني ټوپک او يوه جازي تومانچه رانيولې ده ، ښايي هغوی تا ته کمين ونيسي او ترور دې کړي . له دې ښکارېږي چې ملک او د درې خانانو دوه درې جلا بندو بستونه کړي دي . که زه د دوی په ځای وای ما به هم ستا د وژلو په باره کې په يوه سري ، په يوه طريقه باندې اکتفا نه کوله .

مهردل پدې کې له محمد مراد پهلوان څخه پوښتنه وکړه : ستا مسوره اسلم او د ده انديوالانو ته څه ده ؟

ــ اسلم دې ځان وساتي ، يوازې او بې ځايه دې نه گرځي . د ملک شاسوار ، گلک او د درې په خانانو پسې دې څرک واچوي او د هغوی په خبرو او خيالاتو دې ځان پوه کړي او ته پخپله مهردله ولسوال او د حکومت نور ماموران د اسلم په باب د خانانو او ملک شاسوار په خبرو او خيالاتو خبره کړه .

اسلم په خبرو ورگډ شو محمد مراد يې مخاطب کړ : د حکومت د مامورانو خبرول فايده نه لري ، دا به يوازې د دوی جيبونو ته د رشوت روپۍ ورزياتې کړې .

محمد مردا رډ رډ اسلم ته وکتل، د چایو پیاله په مځکه کېښوده، سره چکن خولۍ یې د لاس په گوتو له تندی څخه پورته تېل ووهه او وې‌ویل: نور نو تاسو پخپله ښه پوهېږئ !

اسلم مخ مهردل ته وویل: محمد مراد پهلوان له موږ سره د دوستۍ او ورورۍ راشه درشه په صداقت او وفا وپالل، رائځ چې د نظر پهلوان د خوښۍ په دې بختوره شپه د مېړانې قول ورکړو چې وږ به له ده سره د مرگ تر ورځې په سر او مال ملگرتیا کوو او په هېڅ مصیبت او غم کې به یې یوازې نه پرېږدو. په دې کې هغوی خپلې غبرگې خپلې د محمد مراد په خپړو کېښودې او په مینه یې د هغه مخ دواړه خواوې چپ کړې. دوی لا د محمد مراد پهلوان نه    د ده د صداقت او رښتینولۍ په باره کې د مینې په خبرو بوخت وو چې جبار له انگړ نه بام ته راوخوت او اسلم یې مخاطب کړ: تاسې راشئ دا معلمان سره کرار کړئ.

مهردل پوښتنه وکړه: خیریت خو دی؟

ــ بیا استاد حمید له معلم جمعه سره په مکتبي خبرو باندې شور ماشور جوړ کړیدی. بزکشانو او د کلي زلمیان همدغسې حیران ورته ناست دي. سر یې د دوی په خبرو نه خلاصېږي، زړونه یې تنگ شویدي، اربڼي کاږي او سرونه یې د خوب پر لورې درنېږي. هغوی غواړي د معلم جمعه دنبوره او سندرې واوري خو استاد حمید سور او سپین اوړي، سترگې یې برگې برگې راایستلي دي او هېچا ته غوږ نه نیسي.

اسلم له ځایه راذگ شو، محمد مردا پهلوان او مهردل یې د لاس په اشاره له بام څخه کته کېدو ته وروبلل او مخ مهردل ته‌یې وویل:

استاد حمید او د ده ملګري غواړي موږ د دولت ټول ماموران له کابل نه تر دې ځایه له یوه لوري جارو کړو .په ده باندې خپل سیاسي خیالات سپاره دي .

مهردل وخندل : دی هغه سړی دی چې د اوبو تر لیدلو د مخه موزې باسي ، خدای دې وساتي . په دې کې درې واړه په انګړ کې د معلمانو د ناسې ځای ته راورسېدل . اسلم مخ استاد حمید ته وویل : نن د نظر پهلوان خوښي ده . بحث به بیا بله ورځ سره وکړو که خوښه دې وي نن د معلم صاحب جمعه جادوګرو سندرو او دنبورې ته غوږ کېږدو .

حمید بحث خوشې کړ ، راولاړ شو او د سګرت اخیستلو ته یې لاس وغځاوه کوم چې مهردل ورته نیولی وه ، پدې کې یې حال یو څه بدل شو ، په سترګو او شونډو یې د رضایت مسکا راوغوړېده او په پسته غاړه یې مهردل ته وویل : پخوا به اندراب کې یوازې دغه اپورچونست حمعه د خلکو ذهنونه خرابول . سږکال دغه د دنیات لیونی ښوونکی ، لاس یې مولانا مهراب الدین ته ونیوه ، د خلکو د ګمراه کولو لپاره راپیدا شوی دی . معلم جمعه خو یوازې د خلکو دنیا خرابوله خو مولانا د خلکو آخرت هم خرابوي او په دین کې نوې بدعتونه راباسي او په سوچه مسلمان باندې د کفر حکم کوي .

مولانا د دې خبرې په اورېدو له ځایه راوغوځېده اسلم او مهردل ته یې په خطاب کې وویل : زه قرآن بیانوم او دې ته معلم حمید اپورچونیزم او ارتجاع وایي ... اسلم خبره له مولانا څخه واخیسته او له مهردل څخه په تلوار پوښتنه وکړه : دغه اپورچونیزم لا څه ته وایي ؟

مهردل وخندل : زما سر نه پې خـــلاصېږي ، دا خبره ښوونکو له

ځان سره اندراب ته راولی‌ده . بله ورځ که خدای کول له معلم‌صاحب
حمید ځخه د دې پوښتنه کوو خو نن د خوښۍ ورځ ده ، مېلمانه او په
تېره زلمیان د ساز او سندرو او د معلم جمعه‌خان خواږه آواز ته سرګې
په لار دي . اوس به بحث په همدې ځای پرېږدو .

له هغې ورځې نه چې قاسم د ده سلا په وزلوبه کې د ملک شاسوار بې عزتي کړې وه درې میاشتې تېرې شوې . نه ولسوال ، نه امنیه قوماندان او نه څارنوال قاسم ولسوالۍ ته حاضر کړی شو . په همدې موده کې په ده پسې د جلب رقعې او ماسلان صیاد ته تله او راتله لیکن هغه نه حاضریده او ملک له ټول اعتبار ، نفوذ او تاوان سره هغه ولسوالۍ ته نشو حاضرولای . د ملک د زامنو بیا په تېره د میرزا او اسفندیار ماغزه هره ورځ ور ته ایشېدل . کله چې هغوی د قاسم له جلبولو او بندي کولو څخه نامینده شول په نورو ګرو چارو باندې یې فکآر وکړ . هغوی پخپل مینځ کې دې مشورې ته ورسېدل چې کروندې ته د تګ په وخت د خپلې کلا تر مخ د قاسم لار ونیسي او لاس ورواچوي او په دې توګه د پلار کسات واخلي ، د دوست او دښمن د پهغور خوله وتړي . ګلک به د ملک شاسوار د زامنو د دې اقدام مخالفت کاوه ، ویل به یې : مار به مړه نه کړئ خو لنډه به یې کړئ . تاسې به پزه ګټهٔ ، سر به بایلئ . قاسم همدغسې پرېږدئ هغه له ملک سره د ده سلا د پېښې په وجه هره ورځ کوټوال ، وهل ټکول ، بندیخانه او تحقیقات په خوب ویني او لکه غل له خپل سیوري نه هم ډارېږي ، موږ او تاسې باید هغه داسې مقابلې ته مجبور نکړو چې زموږ د سولو لپاره پر خپله هستي هم اور بل کړي . زه قاسم پېژنم هغه ډېر بد سترګی سړی دی او ډېر زبردستي او لاس بري نه زغمي ، بیا هغه یوازې نه دی ، د اسلم ټول انډیوالان سپاره او ښکایان او د دنبورې د مجلس ستنګان ورپسې ولاړ دي . د اسلم او ملک مهردل په وجه د اندراب دول مشران او خانان د هغه پر لورې دي . حاجی عبدالاحد خان ، د پلخا وکیل قیــوم خان ، سید اشرف ، د خوش درې غلام حیدر

خان حتی په پټه کې ولسوال ، څارنوال او د مالیې مامور هم له هغوی سره همدردي لري او اوس خو یې د مهردل د ملګرتیا په وجه ریښې ان تر بغلان او کابل پورې ځغلېدلې دي . ستاسې لپاره د پلار د کسات اخیستلو ښه او لنډ لاره هماغه یوه لاره ده . هغه دا چې په یوه ګوزار ډېرې نښې وولئ . یعنی اسلم ختم کړئ چې هم له هغه نه ، هم له قاسم نه او هم د ټولو ستنګانو له مصیبت څخه یو ځل او د همیش لپاره خلاص شئ . مار هېڅکله په لکۍ او ملا مه وهئ چې وهئ یې په سر یې ووهئ .

ګلک به په هفته کې یو دوه وارې خامخا د ملک شاسوار لوري ته راته او مازیګرې به د ملک شاسوار له زمنو ، وریرونو او مزدورانو سره د ژرندې په وټې باندې کېناست او مرکه به یې ورسره کوله . هغه پرله پسې د ملک شاسوار زمن د اسلم وژلو ته هڅول او د هغوی ذهن به یې د ژرندې او باغچې پلورلو ته چمتو کاوه . ګلک به اسفندیار ته چې د ملک شاسوار مشر او د واک زوی ؤ په وړ وړ تلقین کاوه چې د اسلم تر وژلو وړاندې ژرنده او باغچه خرڅه کړي او ځان پوره تاوان ته چمتو کاندي ، ګلک د هغه ذهن ته دا خبره هم ورکوله چې د اسلم تر وژلو وروسته به ملک شاسوار حج ته ولیږو او تا به د هغه پر ځای ملک کړو او بیا که خدای کول چې زه درته ژوندی یم په یو کال دننه به دې لک پتی کړم او د یوې ژرندې او باغچې پر ځای به څو څو ژرندې او باغچې درته راونیسم . ګلک به له دې خبرې سره سترګې د اسفندیار په سترګو خښې کړې له یوې شېبې چوپیا نه وروسته به یې د خپلې خلرې د پخولو لپاره وویل : هو زویه ، هو همداسې ده ...

اســلم د قاسم له خور سره د نظر پهلوان د پښارتې څخه راوروسته

د یارانو په ټینګار له خپل کور څخه په کوز صیاد کې د ملک مهردل کور ته په منځنی صیاد کې ولیږدیده . د بزکشې یارانو هغه د ملک یوسف په باغ کې د وزلوبې د آسونو په روزلو بوخت کړ . د مهردل مشکي ، د ثوفی محی الدین کرنګ او د محراب محمد رضا تور غوږی سمند او داسې نور وتلی آسزنه یې هلته راغونډ کړل او د لومړي ځل لپاره یې په اندراب کې د نامتو وزلوبانو لپاره د ناستې ولاړې او مېړن پالنې یوه د مینې او صداقت ډیره پیدا کړه .

اسلم کرۍ ورځ د آسونو په پاللو بوخت ؤ او شخصاً به یې د هغوی د موټې ، تمرین او روزنې کار پر مخ بیوه . هغه د سکندر او مهردل د وروڼو په مرسته تور غوږي سمند او د محی الدین کرنګ ته له خنډونو څخه د ټوپ وهلو او د ملونو په اشاره د ګرندیو او لنډو راتاوېدو تمرین ورکاوه . او په تور مشکي باندې یې نو کار کاوه . هغه ته یې پر ورغومي یاندې د زنګون وهلو ، خولې اچولو او بې ملونو له مرستې د سپاره د موازنې په اشاره ښي او کیڼ لور ته پر راګرځېدو تمرین ورکاوه . هغه د بنو له وزلوبې نه وروسته ډېر مجرب شوی ؤ . خلکو د ده شهرت د اندراب له پولو نه د باندې خوست فرنګ ، نهرین او شکمش ته پراخ کړی ؤ . شهرت او محبوبیت د اسلم د زړه دننه د انتقام لمبه نه شوه سړولای . هغه له دې ټول افتخار او سر لوړي سره نه توانېده له ملک شاسوار څخه د خپل حقارت او ذلت بدله واخلي او ثابته کړي چې دی د صیاد یو سیال او مېړه هستوګن دی او د دې وړ دې چې پر ده باندې د یو نارینه او غیرتمن کلیوال په توګه حساب وشي . د مهردل کره د ده له راتګ نه راوروسته فیروزه مړه شوی وه . د تدفین مـــــراسم یې ډېر ساده او بې تشریفــــــاتو وو . د ګوتو په شمیر

محدود کليوالو د هغې کټ له درې نه صياد ته راوړ . د درې خانانو د هغې د ځنازې په مشايعت کې ګډون نه وکړی ، ملک شاسوار ، ګلک او د هغوی ښځينه وو د دين او دود په خلاف د فيروزې له ځنازې او فاتحې نه ځانونه ګوښي کړل . د صياد عام اوسيدونکې د فيروزې د ښخولو په ورځ د خونړيو پېښو منتظر وو . ملک شاسوار د کلا دروازه تړلې وه او نيږدې تر يوې هفتې پورې په کوڅه او باغچه او کلا په شاوخوا کروندوکې د ده څوک نه ښکارېدل . چاپيريال يې داسې و لکه د ده ټول چې په لويه تبه مړه شوي وي او ژوندي ساري نه وي په کې پاتې . د فيروزې غمجن مرګ د هغې د مظروميت او بدمرغۍ داستان يو وار بسا د خلکو په ارواحو او وجدانونو کې د همدردۍ او زړه سوي احساس راوپاراوه .

اسلم پوهېده چې د صياد د خلکو عمومي غوښتنه او باور دا دی چې دی به دا د شرم او پيغور تور داغونه چې فيروزه يې د پيغلتوب او ښايست له تخت نه د ذلت او مرګ تورو تمبو ته ورکړه په هر قيمت حتی د خپلو وينو په بيه د صياد له پاکې لمنې نه ووينځي او د کلي د سپېڅلتوب د بسيا کولو لپاره به قرباني ورکړي .

د فيروزې له مړينې راوروسته د اسلم رفتار ډېر بدل شوی ؤ که څه هم يارانو هغه يوازې نه پرېښود ليکن د ده تسلي نه کېده او ځمکې ځای نه ورکاوه . هغه له انډيوالانو څخه ګيله من ؤ چې له ده نه يې ولې د فيروزې د مړينې پېښه پټه کړې وه . هغه ويل له ما نه د عبادت او قربانۍ ورځ قضا شوه . ما بايد په همدې ورځ د خپل نوم او شرف دښمنان او د فيروزې د ارمانونو لوټماران سزا ته رسولي وای . زه يوازې د همـــدې لپـاره ژوندې يم چې ورې له ليوانو څخه وژغورم او

دلته په صیاد کې د څمکې د پامولو او له زړونو د ویرې د لرې کولو لپاره خپل ژوند نذرانه کړم . زما د قربانۍ د قبلېدو لپاره به تر دې لوړ درشل او محراب چېرې وي ؟ زه بزآشي او د نارینه وو رفاقت ، عبادت او ریاضت د دې لپاره کوم چې په ما کې سپېڅلتیا او د قربانۍ احساس پیاوړی کړي . اسلم د فیروزې د خښېدو د مراسمکو په دریمه ورځ د هغې په رحلت خبر شو . هغه داسې احساس وکړ چې د زړه پر سټ یې د ګولۍ لاوزار وشو . په ګوګل کې یې مړ انګار لمبه شو ؤ غوښتل یې چیغې ووهي لیکن د فریادونو طوفان یې په ستوني کې مات شو او اوښکې یې د سترګو په څېړمو کې لوګې شوې . ټولو ونو ، دیوالونو چیغې کړې ، آسمان لکه څرخندۍ د هغه د سترګو په وړاندې په ګاڼېدو شو . هغه له ځان سره وویل : خپل ځان او خپل غمونه به د چا لمنې ته وراچوم ؟ له چا سره به مینه کوم ؟ زما غمونه خو اوس غرونه شوو ، زما هڼوکې ماتوي ، زما هوډ خو ځای ته و نه رسېد او زه د دې وړ نشوم چې د کبرجنو مخ ته ودرېږم .

هماغه ماښام اسلم تور غوږې سمند زین کړ ، برناو ټوپک یې غاړې ته واچوه او آس یې د کلا نه د وتو په نیت تر جلب ونیو . مهردل او نور انډیوالان چې هغې ورځ د اسلم د ډاډ ګیرنې او دلاساینې لپاره د ملک یوسف په قشخانه کې راټول شوي وو ، له اسلم نه یې  د تګ د لورې او مقصد پزښتنه وکړه . هغه په ساده او لنډه جمله کې وویل : خپل کلي ته ځم .

مهردل له اسلم نه پوښتنه اوکړه : په کلي کې څه کوې او د تګ مقصد دې څه دې ؟

ــ د فیـــــروزې قبــر ته ځم ، هغه چې ما ونشوه ګټلای او تر پایه

پورې عدالت ورسره نشوه .

ــ اوس ته له هغې سره څه کولای شې ؟

ــ دعا ورته کوم . عذر ځینې غواړم . وعده ورکوم چې د دې د مظلومیت انتقام به واخیستل شي .

مهردل هېڅکله اسلم په دومره مظلومیت کې نه و لیدلی ، زړه یې وربانددې وسوځېده او په ګوګل کې دننه یې د ژور درد احساس وکاوه . له یوې ځغلنده او لنډې شېبې وروسته یې هغه ته وویل : ما خو داسې پتېیله چې غمونه به یو ځای ګالو او هوډونه په ګډه پالو . موږ او تاسې په تیاره کې سره پیدا کړل او رڼا ته راووتو ، اوس چې زړونه او هوډونه سره یو شول ته زموږ په مېړانه بې باوره شوې .

اسلم په داسې حال کې چې ښنه یې په سمند اړوله مهردل ته وویل : نه نه مهردله داسې نه ده . زموږ مینه د مېړانې په ډګرونو کې پخه شوې ده او په همدې ډګرونو کې به دوام کوي لیکن تر هغه ځایه چې په فیروزې پورې اړه لري ، هغه له ما نه لوټ شوې ده . هغه زما په بې وسۍ او بې غیرتۍ کې د ښامار ژامو ته ورلویدلې ده . ما ورته کتل چې هغه تور ښامار وخوړله . هغې ما ته چیغې راوهلې ، زه یې ورننګولم ، په ما یې اعتماد کړی ؤ ، خو هغه زما د سترګو وړاندې لوټ او تباه شوه . ما د هغې ژړاوې او فریادونه اوربدل ، ټولو د هغې فریادونه اوربدل ، ما ویل عدالت به ورسره وشي او غوږونه به ورته ونیول شي خو هغې ته غوږ و نه نیول شو او ما ته غوږ و نه نیول شو . اوس نو زه له چا نه عدالت نه غواړم . زه د کسات لمنه نیسم او پهپل همت تکیه کوم . زه په صیاد کې د مظلومیت د پای ته رسولو لپاره په خپلو متو او منګولو د هغې کسات اخلم ، د هغې د عزت او شرف د د ساتلو د پاره

ذمه وار خو زه وم ، لنگوټه خو زما له سره لویدلې ده او اور خو زما د ارمانونو جونگړې ته لویدلی دی ، زه هېچا ته اجازه نه ورکوم چې خیرن شوی مخ او خیرنې جامې راپرې مینځي . زه خپل مخ او خپلې جامې پخپله مینځم . زه د وینو په قربانۍ د خپلې بېغورۍ او غفلت جبران کوم .

هغه دا وویل او سمند ته یې پونده ورکړه او د سترگو په رپ کې د تورې شپې په نایابه دریاب کې ، چې ټولې لوړې او ژورې یې په ځان کې ډوب کړې وې ، الونیا شو .

ملگري له تورې تیارې نه د برنډې څراغ ته را په شا شول . لا د اسلم د سمند د پښو دربې اوریدل کېده چې مهردل ، سکندر ، محمد نظر پهلوان او نورو ځل شویو آسونو ته ملونه ورواچولی او بې له ځنډه د کوز صیاد په استقامت وځغلیدل .

کوز صیاد ته له رسیدو سره سم د کلي له شا نه د جومات پر لور را مات شول . د قاسم یاران او د بنو معلمان چې پدې شپه په کوز صیاد کې مېلمانه وو ، د باندې راووتل او د جومات پر لوري را مات شول . آدینه د آسونو په شنهار کې د مشکي آواز چې مهردل راوستی ؤ ، وپیژانده ، نا ببره یې په لور غږ وویل : یارانو اسلم دی ، نن شپه به د ښامارانو سرونه ورمات کړي . ای ځوانه څنگه بې له ما نه د وینو په لار روان شوې ، البته په ما دې مېرانه او ښه ځوانتوب نه لورېږي .

راغلیو سپرو په تیاره کې د قاسم غږ وپیژنده . سکندر آس د هغه په لور پونده کړ ، سلام یې واچاوه او په ټیټ غږ یې ورته وویل : دغه نور څوک درسره دي ؟

ــ آدینه ، معــــلم حمید ، معلم جمعه ، د کشناباد مېلمانه او د بنو

دادمحمد پهلوان ، نور زموږ د خپل کلي هلکان ... او په تا پسې‌دا نور سپاره څوک دی ؟ خیرت خو دی ؟

ـ اسلم خو د لته نه دی راغلې ؟

ـ ولې آیا هغه له تاسې سره نشته ؟

ـ هغه د میراب محمد رضا په تور غوږ سمند باندې مخ په دې کلي راوځغلېده او موږ د هغه پل پسې راواخیست .

په تیاره کې د مهردل دروند غږ واوریدل شو : قاسمه ته پخپله یوازې دې لورته د جومات برنډې پلو راشه .

قاسم په تیاره کې مهردل ته د سترې مشي لاسونه وروغځول او مهردل هغه تر لاس نیولی د جومات برنډی ته ورسره بوت . د کلي ملا خپلو طالبانو سره د آسونو په دربي او د کلیوالو په ګنه ګوڼه برنډې ته راوتلي او کتار ولاړ و . مهردل د شپې په تیاره کې ملا او طالبان په اټکل تشخیص کړل او د کلي ملا قاسم وپیژنده او وې پوښته : قاسمه خیریت خو دی ؟

قاسم مخ مهردل ته راواړاوه وې ویل : ځواب ورکړه مهردله !

مهردل په تیاره کې ملا ته ورنږدې شو او په ناست آواز یې هغه ته وویل : ملا ثاحب کله چې د خدای او رسول د امر خلاف ورزي وشي او د خلکو تر مینځه انصاف تر پښو لاندې شي ، شرارت او فتنو ته لار خلاصېږي .

ملا په هیجان او تلوار وویل : خدای دې فضل وکړي آخر پېښه څه ده ؟

ـ په همدې کلي کې د اسلم چنغل د جابرانو په لاس خرڅه شوه ، کور یې لوټ شو او د کلیوالتوب حقوق یې تر پښو لاندې شول .

د کلي سپين ږيرو او تا رنګو ملايانو دا ټول وليدل او خوله يې پې پټه کړه . وروسته چې اسلم راپيدا شو او د انصاف مطالبه يې وکړه ، تاسو د لوټمارانو په ملاتړ کې د حق کتمان وکړ . اوس د حقدارانو په زړونو او ځيګرونو کې د کسات اور لمبه شوی او داسې ښکاري چې د خدای غضب به په ظالمانو او کبرجنو باندې نازل شي .

د کلي ملا د موضوع په وخامت پوه شو ، پخپل سر ووېرېده او د غوړه مالۍ او معذرت په ژبه يې وويل : خدای حاضر دی چې ما د اسلم په باب داسې نه غوښتل ، ليکن ملکانو او خانانو ته څوک په مخه ورتلای شي . موږ خو خيرات او اسقاط ته ناست کسان يو ، تر خولې يې نشو تېريدای او ترخه خبره چا ته نشو کولای .

ــ چوپ شه ، چوپ شه ملا صاحب حقيقت داسې نه دی لکه چې ته وايي . هغه ملا محمد وزير او د تل مير غازی مولوی صاحب چې له خولې نه يې اور بادېږي چا د حق په ويلو له وطن څخه وشړل ؟ وفرمايه مولوی صاحب او خپلې حجرې ته ننوزه د حساب او کتاب ورځ به رارسېږي او تا ته به خپله برخه ورکړی شي .

ملا چې پګړۍ يې پر سر خوځېدله د تورې تيارې په پرده کې بې غږ او غوړه د حجرې په لور لاړ او طالبان يو يو پسې وروخوځېدل .

مهردل قاسم راګوښه کړ . ورته وې‌ويل : وروره د مېړانې وخت رارسيدلی دی . اسلم نور ملک ته نه دريږي ، د هغه واک د کسات د ديب لاس ته لويدلی دی په هغه کې د ليونتوب او بېواکۍ نښې راپيدا شوې دي . هغه د فيروزې غمجنې مړينې د بريد درشل ته راوستی دی . هغه نور صبر نه کوي او ګوته د انتقام په ماشه ټينګه کړی .

قاسم بېـــواکه چيغې کړې : ما خو همدا غوښتل مهردله ! دا اوس

هم ناوخته شوې ده اسلم بې له تورې او کسات اخیستلو نه بله لاره نلري ، نارینه چې د نارینتوب له تخت نه‌ولوېده د هغه بیا څه ارزښت او عزت پاتې کېږي .

مهردل د قاسم په اوږو لاس راښکود او هغه یې له ځان سره وخوځاوه او ورویې په غوږ کې ورته وویل : اوس د عمل وخت نږدې شوی دی . تېزې او ترخې خبرې له مصلحت نه لرې دي . کسات اخیستل او د وینو بهول څه سخت کار نه دی لیکن دا چې په کسات پسې ، په کسات اخستونکو څه راځي باید فکر وشي . زموږ او د اسلم د مدعیانو تر مینځ وضعیت ډېر باریک شوی دی . ولس جنګ ، پرخاش او زبردستي نه خوښوي خو د مظلوم د ملاتړ فهم او اسباب نلري . د دې ټولو جنجالونو او مصیبتونو له فهم سره سره موږ نه شو کولای خپل تقدیر بدل کړو . د اسلم تقدیر زموږ د ټولو تقدیر دی . موږ به په دې خپله سیمه کې د ځوانمردۍ ، دود او دستور ته خپله وینه ورکړو . او د خلکو تر مینځ به د انصاف او نارینتوب کمزوري شوي دودونه یو وار بیا راتازه کړو .

مهردل او قاسم په خبرو خبرو کې د اسلم په لټه د کلي هدیرې ته راورسیدل . په تیاره کې د قاسم سترګې په آس پریوتې او په دې کې یې په ډېر غږ مهردل ته وویل : نه مې درته ویل چې دې ، اشاره اسلم ته ، د زړه چاودونکو غمونو په مهل د خپلې مور قبر ته راځي او هلته خپل هوډ تازه کوي . لیکن نن د فیروزې قبر ته په ګونډو شویدی .

مهردل او قاسم کرار کرار د اسلم لور ته وخوځېدل ، قاسم تر یوې چوپتیا وروسته د خپل عادت سره‌سم په حاکمانه غاړه وویل : نه نه اسلمه ښه دې ونکړل وخت درنه تېر شو . تا باید د فیروزې تر مړینې

وړاندې د انتقام عبادت پر ځای کړی وای . ستا اوښکې اوس بې وخته باران ته ورته دی . ستا کسات اخیستل به د فیروزې له ګالل شویو غمونو او هدر شوې ځوانۍ سره هېڅ مرسته ونکړي .

په دې کې دوی د فیروزې ګورته نیږدې راغلل . اسلم د فیروزې د قبر ختیځ لوری ته مخ په قبله په دوو ګونډو ناست ؤ .شپې د هغه په اوښکو باندې د تیارې پرده اچولې وه . خدازده چې ده به هغې ته څه ویلي وو او د خپل زړه په اورونو باندې به یې د کوم تسل اوبه شیندلې وې . اسلم د مهردل او قاسم په لیدو له ځایه ورړ شو او مهردل هغه په غیږکې ونیو او دواړه یو ځای په ژړا شول . ملګرو د لومړي ځل لپاره د اسلم د مظلومیت ځګروي واوریدل . آخر انسان ، انسان دی . هر څومره چې پیاوړی وي د بې رحمۍ او بې عدالتۍ زغم نشي کولای .

اسلم په تیاره کې قاسم په غیږآې ونیو او په نیولي آوازیې مخاطب کړ : ما ډېر کوشش وکړ چې پخپل ګوګل کې دننه د انتقام لمبې مړې کړم او د انصاف غوښتلو له لارې عدالت ته ورسیږم خو زه چا سیال ونه بللم او اوښکې یې راپاکې نکړې . زه یې سپک وتللم او زما مېړانه یې تحقیر کړه . ما ته اوس بې د وینو تویولو او کسات له لارې بل لورې نه دژ پاتې شوی . زه راغلم او دلته مې خپل هوډ تازه کړ . زه به په دې کلي کې د انصاف او عدالت د پاللو لپاره خپل هوډ پرځای کړم او د هغه لپاره به زه پخپله قرباني ورکړم . زه سر له سبا برته په همدې کلي کې خپل کورته راځم او همدلته به د هغه مظلومیت تور داغ له خپلې لمنې مینځم و کوم چې له ما نه په همدې کلي کې زما ناموس ، زما نارینتوب او زما کوچنۍ هستي اخیستې ده ...

هغه په خبـرو خبرو کې په سمند پښه واړوله او د برناو تړپک ماشه

يې راښکوده ، د هغه ټول ججوری يې په هوا تش کړ او مخ مهردل ته وويل : له ما نه د سولې او خير خوښووني وخت تېر شو . تاسې انډيوالانو په غلطه تجويز کړه چې زه د ملک شاساوار او ګلک له دسيسو نه د ځان ساتنې لپاره له خپل کلي لرې شم او ځان ګوښه کړم . زما قوت په يرغل او بدله اخيستلو کې دی . زما کمزوري له هماغې ورځې پيل شوه چې کله مې کلي ملک شاسوار ته ورپرېښود او پخپله د ملک مهردل په کور ننوتم . څوک چې د خپل حق دفاع نشي کولای د خلکو ملاتړ څخه بې برخه کېږي او د خلکو د همدردۍ وړتيا نلري . هر بزکش چې په ميدان کې د آس له شا وغورځول شي ، خلک ورباندې خاندي ليکن هر قاهر سپاره ته د زړونو او کورنو دروازې خلاصيږي . نارينه بايد پخپلو پښو او متو تکيه شي . که پړانګ خپل تيره غاښونه او څيرونکې نوکان و نه کاروي ، شغالان او ګيدړې به خرمن څنې وباسي .

قاسم په لوړ آواز وويل : ته اوس سم پوه شوې چې په پسته غاړه له دښمن نه نشي حلاصيدای او بې له تورې او مېړانې چا ته حق نه ورکول کېږي . نيک او خيرخوښوونکې کسان خو ځکه خپل حق ته نه رسېږي چې توره ته تيکې نشي راايستلای او د وينو تويولو شجاعت نه لري .

مهردل د قاسم په خبرو کې ورننووت او په نګمه غمجنه غاړه يې وويل : قاسمه ! ستا خبره سمه ده خو بشپړه نه ده . اسلم صياد ته د خپل راتګ په هماغه لومړي سر کې کولای شول چې د ملک شاسوار او د درې د خنجر خان غاړې ورپريکړي ليکن هغه دا ډاډ نه درلود چې د ده کسات اخيستنه به په خلـــکو کې د ده په مېړانه او پور اخيستنې

باندې وشمیرل شي ځکه خوېې د ګریوان د ځیرلو په ځای تنې خلاصې کړې ، صبرېې وکړ ، وخت یې قابو کړ ، خلک یې په حقیقت پوه کړل . تا ، ما ، بل او بل ته یې واقعیتونه څرګند او غاړې یې په دښمن خلاصې کړې . په دې کې یې د بزکشۍ په میدانونوکې خپله وړتیا او مېړانه هم وښودله او ځان یې د خلکو زړونو ته ننه یوست او دا دی اوس چې د دې حقانیت لکه لمر روښانه شوی او ثابت شوی دی ؤ کولای شي داسې کسات واخلي چې زموږ ټول ولس شاباسی ورکړي او د ده دغه عمل د تیري کوونکو لپاره یو عبرت او درس شي . خو خبره په همدې ځای نه خلاصېږي موږ او تاسې هم له ده سره د ملګرتیا او ورورۍ په وجه یو فرض لرو ...

قاسم د خپل تاوده مزاج له کبله د مهردل په خبروکې ورولوېده او په جدي او لوړ آواز یې پوښتنه وکړه : کوم فرض ، موږ څه کمی کړی دی ؟

ــ ډېر کمې مو کړی دی .

ــ مثلاً ؟

ــ مثلاً د دې پرځای چې ځان د اسلم په خیالاتو پوه کړو او هغه ته فایده منه مشوره او ملاتړ ورکړو . د هغه مخالفان او دښمنان مو په ناپوهۍ او غلطو تصوراتوکې تحریک کړی او تهدید کړی .

ــ زه ښه پوه نشوم ، ما ته سمه سپینه دهقاني خبره وکړه .

ــ نو خپه کېږه مه . تا ولې د ده سلا په بزکشۍ کې ملک شاسوار د ټول عالم تر مخ وواهه ؟ تا ولې د کلي په لارو او کوڅوکې د ملک له زامنو او ګلک سره د مخامخ کېدو په مهال هغوی په بار بار وکنځل ؟ تا ولې د کلي مــــلا ته چې د ملک انډیوال او د حــکومت جاسوس دی

ترخې او سپورې خبرې وکړې ؟

په خبرو خبرو کې هغوی کلي ته راورسیدل ، مهردل له اسلم سره د قاسم په کاله کې پاتې شو . هغوی کرۍ شپه سره وغږیدل او دې فیصلې ته ورسیدل چې اسلم دې هماغلته کوز صیاد په محل په خپل کور کې استوګن شي . هماغه شپه اسلم په لومړي ځل لپاره مهردل او قاسم ته د فیروزې د ترخه برخه‌لیک په باب مفصل معلومات ورکړل . هغه وویل : فیروزې ځینو ښځو ته چې د درې له خانانو سره یې تګ راتګ کاوه ویلې وو چې اسلم به بیا صیاد ته راشي . هغه به زما د مظلومیت بازخواست وکړي . هیڅوک به د هغه له انتقام نه خلاص نشي . هغه به د ملک شاسوار په کور اور ولګوي او دغه مرتد خنجر به غره ته وخیژوي او د ارچې په ونه پورې به یې راځوړند کړي .

اسلم د دې مطلب تر بیان وروسته یوه شیبه چوپ شو او بیا یې تر یو تېک او تامل وروسته داسې خپلو خبرو ته دوام ورکړ : فیروزې دا خبره ځکه کړي وي چې هغې زما په مېړانه او د صیاد په ناموس پالنې کلک باور درلود . زه په هېڅ توګه نشم کولای چې د هغې دغه حق هیله او دا لوړ باور ضایع کړم . زه د فیروزې ستر اعتماد او د هغې مینې ته چې زما په وفا کې یې په ځان اور ولګاوه ، د خپل سر او وینو نذجرانه وړاندې کوم . زه زیات وخت نلرم له تاسې نه غوښتنه کوم چې ما نه لرې شئ ، زه خپل برخه‌لیک کسات ته د وینو او تباهی سیلاو ته ورکوم . که زه داسې ونکړم خدای او خلک به ما و نه بخښي او د پلرونو ارواح ګانو او د هغوی قبرونو ته به شرمنده شم . د فیروزې په هوډ کې به ماتې وخورم او په اندراب کې به د بې ننګۍ او ذلت مثال شم .

په خبرو خبروکې هغوی شپه سپېدو ته راورسوله . د کلي ملا د سباوون د آذان ناره جګه کړه . د صیاد ځوانان او په کلي کې له نورو سیمو راغلي بزکشان او ښوونکې په لمانځه کې سره مخامخ شول . له ټولو سره د تېر ماخستن د دزو او کلي ته د اسلم د سپو د راتګ په باره کې پوښتنې پیدا شوې وې . هغوی د اسلم ، مهردل ، سکندر او د منځوي صیاد د ځینو نورو سپو په غیر منتظره لیدلو لا خیران شوي وو .

اسلم تر لمانځه وروسته هغوی په کوز صیاد کې خپل کورته د راتګ په باره کې پخپل تصمیم باندې خبر کړل . هغه وویل : زما کور اوس یو څه ودان شوی او ځنګه چې په هغه کې پرته له ما څوک نه اوسېږي او زنانه پکې نشته ، دا د دوستانو او د کلي ټولو زلمیانو مخ ته پرانیستی دی .

معلم جمعه اسلم ته کورودانی ووایه او وې ویل : نه اسلمه وروره په موږ باندې باور ولره ، ستا دغه ختین کور به د مینې او ورورۍ قبله کړو . د تا له راتګ سره زموږ د صیاد په زلمیانو کې د ښېګڼې ، اتفاق او غیرت سا راژوندۍ دوی ده . موږ ښه پلرونه لرل ، باید د هغوی دود او دستور ، صداقت او شهامت راژوندی کړو او ویې پالو . موږ په تا کې د خپلو پلرونو نښې وینو ځکه خو په تا راټول شوي یو او له تل سره ناسته ولاړه کوو اوس موږ ستا نوم د اندراب په ټولو کلیو کې اورو ، د تا له ښه حلقیت ، خوږ او فایده منو خبرو ، نیک عمل او نامتو سپرلو سره په شاوخوا زلمیانو کې بیداری پیدا شوي ده . که چېرې زموږ له وسه پوره وای او د هغوی پالنه مو کولای شوی ، سلهاوو زلمیان به ستا شاوخوا راټول شوی وای لیکن د دوی پالل ، د دوی ډوډۍ ، چـــای او چیلم زموږ په لوڅـــو ډډو نه بسیا کېږي او د همدې لپاره له

هغوی سره یوازې په ودونو ، بزکشیو او بازار په ورځو کې گورو ، خبرې او مینه ورسره کوو او هغوی ستا د کتو او مرکې غوښنه را څخه کوي . په دې کې ناڅاپي قاسم د جومات په ملا غږ وکړ : ملا صاحب د قرآن شریف یو سوره ووایه !

په جومات کې ناست کسان ټول غلي او حیران شول او ملا صاحب غاړې صافې کړې او د خدای د کتاب څو آیتونه یې ولوستل او دعایې وکړه .

قاسم چې د جومات محراب ته نیږدې یې په دیوال ډېره لگولې وه له خپله ځایه مخ ته راوښوییده ، په گونډو شو او جومات والو ته یې وویل : څو ورځې وړاندې فیروزه د خدای بخښلي گلدار لور د اسلم پهلوان چونغل چې د ملک شاسوار له لوري لوټډ شوې او د درې په لیوانو پلورل پوې وه حق ته ورسیده او دلته زموږ په پلرنۍ هدیره کې خښنه شوه . لاس پورته کړئ چې هغه دې خدای وبخښي او په شهیدو بیبیانو کې دې وشمیري ، او اسلم ته دې خدای اجر او د بدل اخیستلو وسه ورکړي .

اسلم د قاسم د دعا له خلاصیدو سره سم په لوړ آواز وویل : آمین یا رب العالمین .

مهردل وویل : قاسم خانه موږ خو د فاتحې د اخیستلو لپاره سلامشوره نه وه سره کړې ، دا د څه وکړل .

جبار چې تېره شپه یې له دوی سره یو ځای تېره کړې وه پر ځان رانغښتې چپنه یې را لرې کړه او په زغرده یې مهردل ته وویل : پرېږده مهردله ښه یې وکړل چې سپینه خبره یې منځ ته راواچوله . موږ خو په همدې سلاگانو او مشورو کې اوبو یووړو .

صوفی محی الدين چې پخوا به يې تل د وساطت او خير خوښوونې خبرې کولې پخپل هراتي پټوکې راتاو شو . لنګوټۍ يې د ورو ځو له سر پورته کړ ، راولاړ شو مخ مهردل ته يې وويل : نينۍ په پټه نه چيچل کېږي . مهردله پرې يې ږده ډېر ښه راغلی ده بيايې مخ قاسم ته ورواړه وه وې ويل : قاسمه د نر بچيه ډېر ښه کار دې وکړ چې د شف شف خبره دې ختمه کړه او سم شفتالو دې ورځخه جوړ کړ . راځه چې سخوندر حلال کړو او د اسلم په کورکې د خيرات ديګونه بار کړو ، هلکان راوبلو چې جومات ته ليمڅی او ټغرونه راوباسي لو سمه مسلماني فاتحه واخلو .

په دې کې دوست محمد اکا چې پر له پسې ټوخېدو او سا يې لنډه لنډه کېدله ، له هوار السنې نه را په غبرګو شو او څک کېناست او په سوې سايې فرياد شروع کړ : قاسمه زويه ! د تا له لاسه چا ته ګريوان څيرې کړم ، زه دې بيا په کوم سپن لاهو کړم . ولې مې په دې تير آخر عمر کې دومره ځوروي ې او د څه لپاره ويدې فتنې راوينوي . ولې د کبر او ناروا لاره نيسې او دغه زما ګلالی او غريب کو ورانوې . ولې د پرديو بديو ذمه پخپله غاړه اخلې ...

په دې کې صوفی محی الدين له ځايه وروخوځيد او دوست محمد اکا ته يې د غوسې په غاړه وويل : دا د بې غيلرتۍ خبرې چا درزده کړې دي . که دغه باتوره او غيرتي زوی دې نه وای ملک شاسوار به تر اوسه ښځه هم درنه بيولې وه . د همدې قاسم برکت دې چې ګلک دې هره ورځ په حلوا او پراټو مېلمه کوي او ملک شاسوار دې حاجي جنتي بولي او غوړه مالی درته کوي . دا نننۍ خبرې چې تا خپل زوی ته وکړې د بې غيرتۍ خبرې دي . خبرې تا وکړې ليکن وشرميدم زه .

په دې قاسم د خبرو وار واخیست او د خپل عادت خلاف یې په ناست آواز او سړه سینه وویل : ابا آیا همدې کلي کې تا د اسلم او فیروزې د پښارتې پلاو نه وخورلی ؟ بیا کله چې اسلم پهلوان له همدې کلي نه په غریبۍ او کار پسې ترکستان ته لاړ ، ملک شاسوار د اسلم د مړینې مجلا تېره نه کړه ؟ او ته د اسلم د مرګ شاهد نه شوې ؟ ورپسې په هم‌دې کلي کې فیروزه د درې خوړین خنجر ته ورواده نه شوه ؟ تا د هغه د واده خوړه و نه خوړله ؟ دا ټول کارونه ستا د سترګو وړاندې ونشول او ته هم پکې شریک نه شوې ؟ خو آیا تا ته کله‌دا خیال درپیدا شو چې په دغهخ سیال او غیرتي اسلم باندې دې ناروا کړې ده ؟ او ته باید د دغو تیریو پتې زکړې ؟ نه پلاره تا هېڅکله دا فکر و نه کړ ځکه چې ته خو ډارن او د ظالمانو مل یې ...

کله چې قاسم دې ځای ته راورسید مهردل په قاسم باندې غږ وکړ : دوه کاله وړاندې د همدې جومات په انګړ کې د همدې دوست محمد اکا په سر زما او ستا غږ سره پورته شو . تا هماغه وخت هم له خپل پلار سره تیری کاوه .

ــ هو هماغه وخت هم حق زما په لوري ، .

ــ هن هېڅکله حق ستا په لوري نه ؤ او اوس هم حق ستا په لوري ندې . هغه وخت چې ته لا د خبرو او مخې نه وې دوست محمد اکا مجبور و چې په هره روا او ناروا کې ملک شاسوار شا ته ودریږي . هر څوک پوهیږي کې چېرې هغه له ملک سره لاوتې ماتې کړې وای هغه ته به هم حیا او پرده نه وه پاتې شوې او لور به یې لکه د ګلدار فیروزه په رڼا ورځ لیلام شوې وه .

ــ مهــردله د تا مـــلاتړه به دومره وکړي چې زما ابا زما مقابلې ته

ودروي. که چېرې هغه په دغه ملاتړ ډاډه شي نو بيا به دغه ډارن او ساده سپين ږيري ته د حق او باطل پوله څوک ورښيي .

جبار په خبروکې راګېر شو قاسم ته‌يې وويل : يو بل څوک به‌يې وروښيي لکه همدا اوس چې صوفی محی الدين وروښووله . له پلار سره زورزياتی او پر هغه باندې غبر پورته کول زموږ له دين او دود نه لرې کار دی . موږ له يوې خوا لګيا يو د ناروا لاس وهنو مقابله کوو او له بلې خوا پخپله د نوې ناروا بنسټ ږدو . دا کار زموږ حقانيت ته تاوان رسوي او موږ کمزوري کوي . . .

دجبار خبرې لا نه وې خلاصې شوې چې دوست محمد اکا له ځايه راج□ شو او په ځګيروېدو او تلوار د اسلم وړاندې سم د لاسه په ګونډو شو او خپل سرېې ورته سرتور کړ ، وې ويل : اسلمه بچيه زما کور د تور سرو کور دی . زه له نارينه وو څخه همدا يو قاسم لرم ، موږ ګرد سره د ده سيورې ته ناست يو . خدای مکړه که دغه زموږ له لاسه وووت زموږ کور بيا چول بيابان دی او موږ له يوه سره برباد يو . . .

قاسم چې د پلار په نيت او خبره پوه ؤ د بړبکۍ لمبه ګړندی په ځای کې ودريده او په داسې حال کې چې ورانه شوې پګړۍ‌يې پر سر سموله د پلار په خبره ننووت : ابا دا څه د شرم خبره کوي ، بيا د تورې چرګې ملا په غوږ کې څه درڅخولي دي . بيا دې په کومه توګه شرموي .

ـ زما ليونيه زويه ! ولې مې د زمرې ژامو ته ورکوې ، ولې مې د خدای نازولو ته په غبږ ورولې .

ارســلا چې د کوز صياد په ځوانانو کې يوه وښيار او د سړو مغزو

څښتن، راولاړ شو ، دوست محمد اکا یې د اسلم له مخې راولاړ کړ او په درانه او کرار آوازیې هغه ته وویل : دوست محمد اکا نن خو زما زړه راوچاوده خو پخپله هم له پلاره یو یم ، ما خو نګیرله چې د کلي ټول زلمیان او بیا همزولي زما خپل سکه ورونه دي او په همدې حساب ته پخپله زموږ ټولو پلار او د دې جوماتوالو برکت یي . اسلم، مهردل ، زه ، جبار او قاسم باید تا ته توپیر ونلرو او ستا کهول ، ستا بیبیانې او ستا د عزت کور زموږ کعبه ده . هېڅ ظالم به د خدای په فضل وخت پیدا نکړي چې ستا دروازې او نغري ته په سپکه سترګه وګوري . زه پخپله دې خبرې ته حیران شوم چې ته ملک شاسوار او ګلک ته د خدای نازولي وایې . د خدای نازولي خو اه یې چې خپله حلاله ډوډۍ خوري او د چا په وینو دې لاسونه نه دي سره شوي . عبادت خو ته کوې او په سپینه بږیره د یو کپ روزی د ګټلو لپاره خو ته خولې تویوې . د خدای دوست خو دغه اسلم پهلوان دی . چې په دې لیونۍ ځوانۍ کې یې خپله لمنه پاکه ساتلې ده او د ظالمانو او قاتلانو مخې ته درېدلی دې او سترګه یې له فلک څخه نه سوځي . د خدای دوستان او نازولي خو دغه وزلوبان او بزګران دي چې د خدای په ځمکه کې د نیکۍ داني شیندي او د لاس په ټناکو روزي پیدا کوي . له تا څخه زموږ هیله دا ده چې ته پنځه وخته لمونځ اودس وکړې او د ظالم ویره له زړه څخه وباسې ...

قاسم وویل : ارسلا ته ابا ته هوایې لګیا یې . دا خبرې چې دی یې کوي د ده نه دي دا د ملا ګلک د پراټو او د شاسوار د پلاو خبرې دي چې د د ده له ګیډې نه خولې ته راځي .

ټولو جـوماتوالو وخندل او په دې کې اسلم راپورته شو . قاسم ته

يې غوسه وکړه او د هغه خبرې يې په خوله کې وروچې کړې . په جومات کې چوپيا خوره شوه . شېبه وروسته صوفی محی الدين غاړه تازه کړه او د دوست محمد اکا خوا ته راغی او هغه ته يې وويل : گوره دوست محمده ، زه او ته هره ورځ دلته د خدای دربار ته سجده لگوو او په پای کې هغه ته ورتگ لرو . هر څه د هغه له لوري دي . څه چې غوښتي وي هغه به کېږي . دغه قاسم په هغه وسپاره . دغه ځوانمردي او لويی زړه يې خو همغه د ده په گوگل کې ايښی دی . او دغه بله خبره خو بالکل سمه نه ده چې گواکې له ملک شاسوار سره د قاسم ورانی د اسلم په خاطر پيل شوې دی . دا ملک شاسوار خو لکه د وبا مرض دی چې د کوز صياد په هر لوی او واړه لگېږي . که همدا زلميان د هغه مخه ونه نيسي دا کلی به د مړو هديره شي . هماغه څه يې چې د گلدار په فيروزې زکړه سبا زما او ستا په لورانو هم کوي ...

صوفی محی الدين لا خپلې خبرې پای ته نه وې رسولې چې يو هلک په وارخطايی جومات ته راننووت او په سوې ساېې جوماتوالو ته خبرداري ورکړ . اور ... اور د دوست محمد اکا کادانې او د خسو کوټې اور اخيستی دی .

جوماتوال د دې خبرې په اوريدو اکه د گبيني مچۍ وترهېدل او په منډو منډو د دوست محمد اکا کور ته چې د اور په لمبو کې رانغښتل شوی ؤ . وروداننگل .

د مني فصل نوې شروع شوی ؤ . د اندراب په لوړو سیمو او سردروکې د ونو پاڼې گلابي شوې او ژیړې شوې وې . په کلي کې د فتنو او نښتو بازار هم تر پخوا سوړ شوی ؤ . د ودونو موسم د کلي وزلوبان او د سیالیو زلمیان د وزلوبو میدانونو ته جلب کړي وو . اسلم د مهردل او نورو یارانو په سلا مشوره له وزلوبو نه د لاس د اوښتو په پلمه ځان گوښه کړی ؤ .

د صیاد وزلوبانو لکه دوه تېر کلونه د وزلوبې په سړني خزاني موسم کې بیا هم خپل نوم او مقام ساتلی ؤ . د مهردل مشکي له نظر پهلوان سرع لار نیولې وه او د صوفی محی الدین کرنگ او د میراب محمد رضا تورغوړې سمند چې داندراب په وزلوب کې، الوتونکې دیوان نومول شوي وو ، ورځ تر ورځ مشهورېدل . خو مشکي لا هم هماغسې د اندراب د خلکو محبوب آس او د وزلوبو د میدانونو بې رقیبه پهلوان ؤ . د وزلوبو په دې تازه موسم کې د ملک او گلک عرضونه او شکایتونه هم له خپل پخواني جوش او تاو نه ساړه شوي وو . دا ځکه چې مهردل د اسلم په غوښتنه د بنو د نسوارو ټیکه نیولې وه او هلته یې یو سموار هم پرانیستې ؤ . هغه هلته دایمي حضور درلود او د خپل کارو بار د پاللو په پلمه د ولسوالۍ په مرکز کې له اسلم څخه د بدو خورو د دفع شر او د ملک او گلک د دسیسو او سازشونو په شنډولو اخته ؤ . خو له همدې ظاهري کرارتیا سره سره صیاد د خونړیو پېښو درشل ته روان ؤ . وزلوبانو او دکلي راویښو شویو زلمیو بزگرانو د ملک شاسوار په مقابله کې خپلې ذمه وارۍ سره ویشلې وې . اسلم د میزان د میاشتې په پنځلسمه د ماښام د لمانځه نه وروسته له جوماتوالو څخه خدای په اماني او دعـا واخیسته ، هغه وویل دې د څو ورځو په مخه نهرین او اشکمش

ته ځي . غواړي د خپلې ځمکې د ابادولو او کرلو لپاره د قلبې غوايې وپلوري . دې هماغه شپه د سپېدو تر چاودېدو مخکې له کوز صياد نه د اندراب د درې د ښيو غرونو په استقامت د خلکو له سترګو پټ د شپنو په غرنيو ځنګلي لارو د خنجان پر خوا وخوځېد او بريځر د بز درې په يوه شيله کې د دمې جوړولو او سبا ناري لپاره کېناست . اسلم ستونی ستاغ وغځيده او د کوڼه‌ګرو غرونو د رنګينيو او منظرو په ننداره شو .

اندراب د مني فصل ته غېږ پرانيستې وه . د هندوکش پر برنيو اوږو د رنګينو وريځو ټړل شوي کتارونه له شمال نه د جنوب لوري ته خوځېدل او د اندراب د درو او شيلو برم او جلال يې څو څو واره زياتاوه . اسلم د اندراب د ختيځ او جنوب د غرونو د ځنځيري سلسلې د بدليدونکې آسمان په ننداره کې ډوب ؤ . هغه له عغلرونو سره مينه لرله او پر طبيعت عاشق ؤ . هغه به په دې شېبوکې د آسمان په دړه د بدليدونکو نقشونو او رنګونو په درياب کې غوپه شوی ؤ . وريځې يو پر بل توپېدې او پرله‌پسې يې د رڼا او رنګونو ترکيب بدلاوه . نوې او لا نوې رنګونه به‌يې د غرونو په بې غباره او لاجوردي آسمان باندې شيندل او د اسلم په سترګوکې يې د دنيا ښايست ته نوي تصويرونه ورکول . د غرونو په ډډو د وريځو برجونه او د پېړيو د شنه ځنګله پر پالنګ د سپينو او ژيړ بخونو وريښمو غوړېدلی چترونه پر لاشونو او څوکو باندې سره ژيړ او نارنجي برجونه ، د دې برجونو تر مينځ د مرمرو تاوراتاو کوڅې او واټونه او په واټونوکې د لمر د وړانګو ويالې دطبيعت دهنر ټول ښايست په اندراب باندې تمام کړی ؤ او په دې کې د شاو خوا کروندو څخه د مني د فصلونو وږمه راغبرګېدله او د درې په

هواره پټاره کې ژیړو او شنو فصلونو ، د جوارو څڼو او د باقلیو ګلانو د اندراب پر کلیو او کورونو ګرد چاپیر یوه رنګینه غالۍ راغوړولې وه . د خواریو او ربړونو فصل مخ په تېرېدو ؤ . د ودونو او وزلوبو موسم په زړونو کې شور او خوشالتیا راوینښوله او پولو پټیو د سرکشو آسونو او مبارزه غوښتونکو وزلوبانو مخې ته سینه پراخوله ...

اسلم چې د لطیفو عواطفو خاوند ؤ ، د طبیعت په جمال کې داسې ډوب تللی ؤ تا به وې چې په هغه کې ویلی شوی او ورک شوي دی . هغه له اوږده تامل نه وروسته را ده ډډه شو او په شور او جذبه کې یې دا خبرې په ژبه جاري شوې : خدایه ستا دنیا څومره ښایسته او پراخه ده او انسان ستا د دې ښکلی نړۍ په ناپایه جنت کې ځان ته څومره تنګ او ځوروونکې زندانونه جوړ کري دي . ما غوښتل د مینې له دریاب نه یو ځاځکی فیروزه د خپل زړه پر تاج کېنوم او ټول عمر د هغې په شکرانه کې ستا په ستایلو او لمانځلو تېر کړم ، خو تا زه د کبرجنو او لار ورکو شیطانانو تازیانو ته وتړلم او زما مینه دې د صبر په اور کې وازمویله . ما د اسماعیل غوندې تر چړې لاندې خپل میثاق وپاله او لکه ابراهیم په اور کې دننه مې ستا آزموینه وزغمله . اوس زما دعا ومنه زما متې او منګولې آزادې کړه او ما ته د مینې په دې خپل کوچنې محراب کې د خپل روح د ښایست او سپېڅلتیا د صیقل کولو لپاره ځلیدونکې تیغ او پیاوړي متې راکړه .

د عقرب د میاشتې په نیمایې کې د کوز صیاد او بر صیاد په لاره کې پر جبار باندې د ټوپک دوه غبرګوني ګوزارونه وشول خو هغه بچ شو او په ځغاستو د خطر له سیمې څخه راووت .

تر دې پېښې راوروسته د جمعې په شپه د دوست محمد اکا په کرونده چې د مني غنم پې کرل شوي وو ، چا د کلي لویه بیاله دوه درې ځایه ورماته کړه او په هوارو پټیوکې یې پلنې او ژورې شېلې ورجوړې کړې . په حقیقت کې مرونده له کروندې ووته او دوست محمد اکا ته یې پوره د یوه کال اضافي خواري ورپیدا کړه . د صیاد په خلکو کې دا ګونګسې راپیدا شو چې دا ټولې پېښې د ملک شاسوار په اشاره او تحریک شوي دي . د عقرب د میاشتې په شپاړسمه شپه د کلي په جومات کې د دغو پېښو په باره کې لوڅ بحثونه پیل شول . ارسلا جوماتوالو ته وویل چې د بنو د بازار په ورځ د راګرځېدو په مهال پې ناوخته شوه . په تیاره شوې هوا کې له هغه ځایه راووت ، پرآس باندې د بار دروندوالي په وجه کرار آرار او دروند دروند کلي ته روان ؤ . ناڅاپي د شا له لوري د سپرو یوه ډله په ځغاستو ورته رانیږدې شوه . په تېرېدوکې یې پر ده باندې د تازینو ګوزارونه وکړل او وروستي سپاره چې متزینه یې غبرګه په ګس کې نیولې وه ، د ده په سینه یې ورپورې وهله او وې ویل : اې ټپوسه ! په پردي اورکې ځان مه سوځه که په دې خبره پوه نشوې بل وار به دې سر کدو شي ... پوه شوې ټپوسه ...؟ هغوی کسونه پونده کړل او په خندا خندا کې له ما څخه لرې شول .

آدینه د غوسې په غاړه وویل : موږ ته اوس سخته شوه . تر دې پورته انتظار او د سترګې پټول به یوازې یوه نتیجه ولري او هغه دا چې که چا زموږ نځې هم په مخه کړې ، موږ به صبر ورته کوو .

هلته یو مساپر ښوونکی چې د جومات په یوه حجره کې اوسېده او د ده سلا په ښوونځیکې یې تدریس کاوه او کله کله به د استاد حمید سره یو ځای د صیاد د وزلوبانو بنډار او مېلوته راته د جومات له یو ګوټ څهع چې د تیلي څارغ کمزورې رڼا پې رپیدله د آدینه خبرې داسې راغبرګې کړې : که تیري ځواب پیدا نکړي معنی به یې دا وي چې موږ د ژوند حق له لاسه ورکړی دی . او د استاد حمید خبره : د ظالم په ظلم کې شریک شوي یو ...

هلته یو بل نوراحمد نومي سړی چې ناسته ونه ،غټ سر نو د بره کې لنډی کوټ یې اغوستی و او د ملک شاسوار نیږدې خپلوان ؤ ، په احتیاط او ټیټ غږ د ښوونکي خبرو ته ور ننووت : دا پښبنې خو د تشویش وړ دي لیکن معلم صاحب ته دلته بلد نه یې دا لوموړی وار ندی چې د صیاد په شاوخوا کې دا ناخوالې راپیدا کېږي . څو کاله وړاندې همدلته د کوز او منځوي صیاد تر مینځ د ژمي په مهال د ماښام او مازیګر تر مینځ یو مساپر لیوانو وخوړ ، په ورتېر دوبې کې د شرف الدین زوی د خپل درمند خواته کوم ظالم شهید کړ ، درې کاله وړاندې ګدام ادر خپله ورینداره ووژله ، د محمد عثمان دوی کور غله وواهه او ټول هست و بود یې ځینې یووړل ، دا پېښبې ټولو کلیوالو ته معلومې دې . خو اوس په موږ کې د بې اتفاقۍ اور لګیدلی دی ، هر څه چې پېښبېږي په هغې پورې یوه لکۍ ورنښول کېږي او پل یې د یو چا دروازې ته رسول کېږي .

قاسم د اور د چار خشتي خوا ته ناست ؤ . د نواحمد خبرو ته راڅک شو . رډ رډیې ورته وکتل د چاخشتۍ ایرې یې د لاس په ګوتو سره لرې کړې ، د خولې نسوار یې پکې تو کړل ، ځان یې د هغه ځواب

ته چمتو کړ او جبار چې پهوا د قاسم کړو وړو ته کابو ؤ د هغه خواته رانیږدې شو ، په پښه یې کېږ.کوده او په دې اشاره یې وپوهاوه چې پرېږده پوه شو نورې له خولې څه راوزي .

خو قاسم تر پایه زغم ونکړی شو او په لوړ آواز یې د هغه خبرې داسې ورلنډې کړې : د زړو کلونو پېښې دغو ننیو پېښو ته ورته ندي . اوز بیا دغه د تا خبرې ته به راشو . هغه مساپر نهریني چې ستا په خیال لېوه خوړلې ؤ ، هغه ګلک د ملک شاسوار په هدایت د پیسو په بدل کې د غلو او داړه مارانو په لاس وواژه او د رشوت په زور یې د هغه خون په لېوانو ورواړاوه . د تا تر خبرې پورې زه له تا نه پوښتنه کوم د شرف الدین د زوی قاتل ، د محمد عثمان د کور غله څوک وو ؟ څه شول او چا یې پوښتنه وکړه ؟ ته پخپله هم ښه پوهېږي چې هغه غله او قاتلان اوس هم د ملک شاسوار په قشخانه کې پلاوونه او پراټې خوري او که ژوند و وبه ګوري چې دا وار یو بل څوک لېونو ته ورکړي . د صیاد خلک په تضرع او عاجزۍ له دغو لېوانو څخه نشي خلاصیدای . د خلاصون لاره یوه ده او هغه د توري په تیغ او د زړه ورو زلمیانو په متهو تېره شوې ده ...

بازګل ، یو سپین‌ږیری چې د ملک شاسوار وره په وره ګاوندی او د هغه همنشین او د سلا مشورې یار ؤ خبرو ته راګډ شو او مخ په ښوونکي یې وویل : معلم صاحب ته زموږ په سیمه کې همسایه یې ، تا ته مناسب نه دي چې زموږ د کلي کور په شخړو کې لاس رادننه باسې او په بل شوي اور باندې تیل وپاشي . او بیا ...

د بازګل په خبره قاسم اور واخیست او د چار خشتۍ نه یې د جومات منځ ته د محراب په لوري راټوپ کړل او په بازګـــل یې نارې

کړې : چوپ شه زړه کېدړه که دې بیا معلم صتحب ته داسې پوچه او بدبویه خبره کړی وه ژبه به دې درپرېکړم .

ټول لمونځ کوونکې چې تر لمانځه وروسته په مرکه سره تاوده شوي وو راولاړ شول او د قاسم او بازګل تر مینځ ورننوتل . بازګل په تور روستاقي چکمن کې ولاړ ؤ . سترګې یې له غومي رډې رډې راوتلې وې ، سر تر نوکه ریږدیده او ژبه یې ګونګه شوې وه . قاسم لکه مست هاتي د جبار ، آدینه ، ارسلا او نورو لمونځ کوونکو په منګولو او محاصره کې یوه خوا او بله خوا ړپیدهاو پرله‌پسې یې باوګل ته ردو بد ویل : ... ګوره او مردار خوره او د شودیارو موږکه ، او د زوره‌ورو نوکره او د خدای منکره ...

دوست محمد اکا د خلکو په ټیل ماټیل کې په ډېر زحمت ځان قاسم ته وروساوه او بې له دې چې د هغه غږ د جوماتوالو په شور ما شور کې واورېدل شي زوی ته یې په عذذر زاریو شروع وکړه او رڼې رڼې اوښکې یې په مخ راماتې شوې .

قاسم په داسې حال کې چې لنګوټۍ یې په غاړه کې ول ول پروت ؤ او چکمن یې له اوږو څخه په کېڼ څنګل راښویېدلی و ، انډیوالانو له جومات نه راویوست .

اسلم خولا یوه میاشت کېده چې غائیب ؤ . په کلي کې آوازه وه چې هغه اشکمش ته د قلبې د غویانو په پېرودلو پسې وتلې دی لیکن آدینه په پټه کې جبار ته ویلي وو چې اسلم پهلوان باجګاه ته نیږدې په غرنۍ سیمه کې د خنجر لار نیولې ده . خنجر خان دوه میاشتې دمخه د کابل ښار ته سفر کړی ؤ . هیله کېده چې هغه به له دوشې څخه د موټر یا آس په سپرلۍ اندراب ته راوګـــرځي . اسلم د باجګاه له سپرو

او د ولیانو د درې له وزلوبانو سره د خنجر د نیولو او تېښتولو خبره پخه کړې وه او د څرک خبرتیا ته منتظر ناست ؤ .

د تورې چرګې ملا ، ملک شاسوار د ژرندې او باغچې پلورلو ته راضي کړی ؤ ، خو د شرعي وثیقې تر ترتیب د مخه مهردل د ژرندې او باغچې د خرڅلاو په باره کې د صوفي محی الدین له لوري د ملک په ژرنده او باغچه باندې د شفعې دعوا محکمې ته وړاندې کړه او پر ګلک باندې یې د ژرندې او باغچې خرڅلاو وځنداوه او په دې توګه یې د اسلم پر ضد د ترور سمدستي احتمالي پلان شنډ کړ . په جومات کې د بازګل او قاسم تر شخړې راوروسته ملک شاسوار او ګلک په دوست محمد اکا بدګمانه شول او هغه یې خپلو کورونو ته له تګ راتګ نه منع کړ .

بازګل او نوراحمد او د ملک نورو خواخوږیو یو په بل پسې جومات او د جماعت لمونځ ترک کړ او د ملک شاسوار د کور تر مخ یې د لویې لارې په سر د بازلال په پټي کې د علحیده جومات بنسټ کېښوده . د جزمات تر جوړېدو پورې د تورې چرګې ملا کله چې به په کور ؤ د ملک د قشخانې په چوتره باندې آذان کاوه او هماغلته به یې خپلو پلویانو ته لمونځ ورکاوه . د کوز صیاد د لوی جومات ملا په جومات کې د قاسم او بازګل د شېړې له شپې راوروسته سبایې د وخته له خپلو طالبانو سره له صیاد نه وتښتېده او له هغې ورځې نه د کلي امامت صوفي محی الدین ته په غاړه ورولویده . کلیوالو وپتېیله چې دا وار باید داسې یو حقاني ملا د کلي امامت ته راوستل شي چې خوله او خبره یې پاکه وي او د ملک په تلک کې و نه نښلي .

سوړ باد چلېـــده ، غرونه خړو لړو راچرموړلي وو . سیلۍ د ونو په

لوخو ځانگو او د بزگرانو د کورنو په بليو کې ښکېلې واهه . کليوالو له سارا څخه خپل ځاروي د کلي په لور را په مخه کړي وو . پليو لارويو اوربوزونه د لنگوټي په شملو پيچلي او چپني چکمني يې په سر او غوړو راښکودلې وې . د کورونو د رغليو او تنرونو لوگي له موريو څخه هوا ته پورته کېدل او د قهرجن باد په منگولوکې لکه د اتڼ دسمالونه رقصېدل او رالوېدل . باد د بزگرانو د کورونو خلاصې دروازېگرځولې او په انگړونوکې د ژمي لپاره د زيرمه شويو بوټو او وښو سستی شوي گيډۍ يې په رغوليو او بامونو باندې رغړولې او له يوه کور نه يې بل ته وراړولې . آسمان په غوسه ؤ ، ځمکه شنډه شوې او سړه شوې وه . غرونو او درو د وريځو منډو او غورځنگونو ته غېږ پرانيستې وه او د ځيړيو شنه ځنگلو نه يې د واورو د سپين غورځنگ هرکلي ته نځول .

دوست محمد اکا له خپلو دوو کوچنيو لورانو سره د خپل يو سخوندر پ پلټلو لپاره چې له نورو ځارويو څخه په بيديا کې پاتې شوی ، د ملک شاسوار باغچې ته ورننوتی ؤ د راگرځېدو په مهال د ملک شاسوار زمنو او سړيو هغه ودراوه او ميرزا د ملک زوی په ډېر قهر ورته وويل : زړه کونگه بيا دلته څه کوې ، ولې له موږ څخه لاس نه اخلې ؟

دوست محمد اکا چې اوربوز او غوږونه يې د غاړې په دسمال او کوځوکې چژموړلی وو او له غوږو هم يو څه دروند ؤ هغه ته ځواب ورکړ : زه شکر دی بالکل جوړ يم ملک څنگه دی ؟

په دې کې ميرزا په دوست محمد اکا سوک پورته کړ په خوله يې وواهه او په داسې حال کې چې د هغه لنگوټی ړنگ شو او په سپينه ږيره بانـــدې يې د وينو نيـــز رامـات شو ، په لوړ آوازيې وويل : اوس به پوه

شوې يې چې ملک څنګه دی ؟

دوست محمد اکا د ميرزا له ګوزار سره سم د ځمکې په لور رامات شو ، ورپسې ميرزا د لنګتو پرله‌پسې او ګړندې ګوزارونه ورکړل او په وهلو وهلو يې هغه د لارې د اړخ لښتي ته ورواچاوه او د دوست محمد اکا د لورانو طرف ته چې هلته پخپلو پړونو کې د باد او دوړو بهيرته د خپل پلار په وير کې ژړيدلې ، راغی او مخ هغوی ته يې وويل : که بيا زموږ چمبر او باغچې ته راګرځيدلي وئ څرمن به درنه وباسم . قاسم چې زموږ پلار ده ده‌سلا کې د زرګونو خلکو تر مخ لاس پورته کاوه بايد په دې پوهېدلی وای چې دغه تيري به خپل مناسب ځواب پيدا کړي او دا دې هغه څه يې چې کړلې وو ، ويې ريبل !

ماشومو نجونو په ډېر زحمت خپل پلار له لښتي نه راپورته کړ او هلته يې د ونو پناه ته د ده چکمن ، چې د لارې په مينځ کې يې له اوږو لويدلی و پې باندې وغوړوه .

صوفي محی الديم چې له جومات نه د مازيګر آذان ته راوتلی ؤ او د باد په وجه وران شزی لنګوټی يې بيا په سر باندې تاړه سترګې يې د قاسم په ماشومو خويندو چې د جومات له مخې په ژړا ژړا تېريدلې ولوېدې او غږ يې وکړ : ولې بچيانو په څه وجه ژاړئ ؟

ماشومو نجونو صوقي محی الدين په پېښه وپوهاوه او په ژړا ژړا د با او دوړو په ناتار کې د کور پلو لاړې .

ثوفي په منډه جومات ته ننووت او کليوال يې په قصه وپوهول . لمونځ کوونکي چې د اور په چار خشتۍ شاوخوا راټول شوي وو ، په تلوار له جومات نه راووتل او ځانونه يې د ملک شاسوار کلا ته ورځيرمه دوست محمد اکـــا ته راورسول . دروند بـاران پيل شوی ؤ او د ملک

زمن او مېتیان په کلا ننوتي وو . دروازې او د مالبند د جارګي کنډرونه يې ورپسې تړلي وو . باد لا هماغسې د تړليو دروازو د کلا په موريو او تير کشونو کې سورې وهلې . سړې او توفاني هوا د کليوالو په زړونو او سينو باندې منګولې ښخولې او ساړه باران د هغوی زړه ته سړه لرې ننه ايستله . هلکانو په تلوار دوست محمد اکا په ځنځولۍ کې راواخيست او د ثوفي محی الدين په لار ښوونه يې جومات ته چې د پيښې ځای ته نيږدې و راووړ . دوست محمد ځګريده له خولې او پوزې نه يې وينې رابهيدلې ، د سر او لاسونو پوستکي يې ګرژالي شوي او دوه درې ځايه سره شوي وو .

صوفي محی الدين خو ځو واره پوښتنه ځنې وکړه . چا ووهلې ...؟ ولې يې ووهلې؟ تا هلته څه کول ...؟

دوست محمد اکا بې له دې چې سترګې پرانيزي او د صوفی محی الدين ځواب ورکړي لکه ړوند بلبل پخپل سر نارې وهلې ، د خدای روی مې درووړې دې هغه زما ليونی ، مطلب يې قاسم ؤ ، مه خبروئ ، هغه ته مه وايې چې زه د ملک زمنو وهلې يم . که هغه خبر شي وينې به تويې شي او سړي به په دې معامله کې مړ شي ...

صوفی محی الدين د اعتراض په توګه وويل : دوست محمد اکا پرېږده چې دا وار د وينو تويوونکو وينې تويې شي او د وينو تويولو لړۍ د هميش لپاره پای ته ورسېږي .

د کلي زياتره زلميان چې د اسلم او قاسم پلويان وو ، د بدې هوا او باران په وجه د مازيګر لمانځه ته نه وو راغلي ، خو کله چې په جومات کې دوو دريو تنو زلميانو د دوست محمد اکا د وهل کېدو قصه واوريدله په منډو منډو د کلی په کوڅو او کورونو راوګرځيدل او

خپا انډیوالان یې په پښېنه راخبر کړل .

ارسلا خو هماغه د دوست محمد اکا د راوړلو په سر کې جومات ته راورسېده او څنګه چې یې هغه سپین‌ږیری په وینو کې لیت پیت ولید د آدینه کشري وررور مجید ته یې په سوځېدلی سا وویل چې هله هلکان راخبر کړه ، سوټې ، کرګان او لرونه راواخلئ .

خالمراد ، د کلي غوبه خو سم د لاسه د پوچ ویلو او کفري کنځلو خوله خلاصه کړه . د ملک او ګلک دین ، مذهب ، یسر او پیښنوا یې یاد کړل او د خور مور او ناموس کنځلې یې وکړې . دوست محمد اکا په رنځور آواز یې غږ کړل : مه مه ، خوله ونیسه ، توبه وکاږه ، کافر شوې .

په جومات کې د غوسه شویو زلمیانو د شور بګت په وجه هېچا د هېچا خبره نه اوریدله د ټولو جوماتوالو احساسات د ملک او ګلک پر ضد راوپارېدل او د خدای په کور کې ناروا خبرې او پوچ الفاظ استعمال شول . د جوماتوالو وینه دومره توده شوې وه چې د مازیګر لمونځ له ځینو نه قضا شو او ځینو نورو په منفرده توګه اداء کړ . صوفی محی الدین لکه نوی زلمی تر هر چا زیات په غوسه ؤ . کله چې ارسلا هغه ته وویل : صوفي صاحب جماعت پاتې شو ، هغه ځواب ورکړ : په غزا کې لمونځونه پاتې کېږي . په دې کې دوست محمد اکا په رنځوره غاړه صوفي محی الدین ته چې د ده په سنبالولو اخته ؤ وویل : محی الدینه د خدای په خاطر یو وار زموږ کورته اړ شه د هغه لیوني تومانچه او سیلاوه خپل کور ته یوسه او جبرې یې پټ کړه ...

ـ دوست محمد ته فکر وکړه چې دا دې څه له خولې راوزي . وهل شوی هم ته یې او عذر هم ته کوې . تا د همدې کمزورۍ په وجه

د کلي له شغالانو نه زمریان جوړ کړل . ته نو له څه ډارېږې . تر دې پورته به نور څه درسره کېږي . قاسم به تر دې پورته د کوم مصلحت لپاره خوله پټوي ؟ دا قاسم نه دی ، بلکه د ملک زمن دي چې د وینو دریاب ته یې لار خلاصه کړې ده . دا تیری به خامخوا خپل ځواب پیدا کړي . دا یوازې د قاسم ذمه نه ده دا زموږ د ټولو ذمه ده . پر تا باندې د ملک د زمنو لاس پورته کول ، دا معنی لري چې د ټول صیاد په ګډه عزت باندې لاس پورته شوي دی . دهغه په دود دستور باندې لاس پوره شوي دی . سپین ږیري پلرونه دي ، دوی په ټولو کشرانو باندې د درناوي او حرمت حق لري ، تر اوسه په دې سیمه کې هېڅ کشر او هېڅکله په سپین ږیري لاس نه‌وجګ کړی ، موږ به د شاسوار د زمنو لاسونه چې په دوست‌محمد اکا باندې پورته شوي دي ، د سپین ږیرو د حرمت ساتلو او د نارینتوب د پاللو لپاره پریکړو . صوفی محی الدین جوماتوالو ته مخ راوګرځاوه او خپلې خبرې یې داسې اوږدې کړې : ملک او ګلک د دوست محمد په بې عزته کولو او وهلو زموږ خوصلې آزمویې که یو وار بیایې دا لاره په موږ تیره کړه ، هله به په‌دې کلي کې د هېڅا پرده نه کېږي او بایده دې چې موږ بیا خپلې لنګوټې لرې واچوو او ټیکري په سر کړو .

ارسلا د صوفي محی الدین په خبره کې ورولوېده او پوښتنه یې وکړه : قاسم چېرې دی ؟

صوفي محی الدین ځواب ورکړ : هغه لا سبایې وخته له آدینه او جبار سره د مهردل کلي ته تللی دی .

ــ آیا تر ماښامه به راپیدا شي ؟

ــ نه نه که موږ یې د دوست‌محمد اکا په پیښه خبر نکړو ، هغوی

به نن رانشي . هغوی د محمد نظر پهلوان د واده په بندو بست باندې غږېږي او له اوریدو اسلم پهلوان له اوږده سفر نه وروسته ملته رارسیدلی دی او نن په هغه ځای کې ټول وزلوبان او یاران په هغه راټول شوې دي .

صوفي محی الدین ارسلا له ځان سره له جومات څخه راویوست او هغه ته یې وویل : په تلوار منځوي صیاد ته لاړ شه . مهردل د دوست محمد اکا په وهل کېدو خبر کړه او زما له لوري ورته ووایه چې د کلي هلکان په دې پېښه ډېر غوسه شوي دي او ګواښېږي و داسې بریښي چې د هغوی د تم کولو واګې به زما له لاسه ووزي ، موږ ته ژر تر ژره جبار او آدینه راولیږه چې د کلي هلکان تر مصلحت او مشورې شورې لاس اچولو نه وساتي . د هغه ځواب راوړه ، ژر تر ژته بېرته راوګرځه او وخت مه ضایع کوه .

مهردل ارسلا د باران په اوبو خیشت پیشت لاس نیولی خپلې قشخانې ته را ننه یوست ، قشخانه د چیلم د تمکو بوی او ترخه لوګې ډکه کړې وه . د اور چار خشتي د څېرۍ په لرګیو ډکه وه او لمبو د ناستو مېلمنو په سترګو کې پړقونه وهل . شاوخوا ناست کسان د ارسلا ستړي مشي ته راپاڅیدل او مهردل مخ اسلم ته وویل : په کوز صیاد کې یو څه پېښ شوي دي ، زموږ ورتګ ضروري شوي دی ، لیکن اوس تیاره ده او موږ هلته کوم لاس او پښې نشو خوځولای . دغه د نن شپې خوشالتیا به نه خرابوو . سبا یې به بیا د تګ ملا وتړو . سملاسې به د پېښې د مخنیوي لپاره اسلم له جبار او آدینه سره یو ځای کوز صیاد ته ولیږو او موږ به تر سبا ناري وروسته پسې ورشو .

په دې ېبرې پسې سم مهـردل د اسلم له لوري قاسم ته‌مخ راواړاوه

او وې ویل : څنګه ته څه وایې ؟

ــ زه پوه نشوم چې زموږ په صیاد کې څه پېښ شوي دی...؟

ــ دوست محمد اکا ...

ــ څه څه ... مړ خو به نه وي ؟

ــ نه مړ نه دی ، خو د ملک زمنو جنګ ورسره کړی دی .

قاسم د تورې پهلوي لونګۍ تر ولونو لاندې سترګې غټې کړې او د عادت په توګه یې د مسخرو په غاړه غټ غټ وخندل او وې ویل : دوست محمد به د ملک له زمنو سره څه جنګ کړی وي . ولې داسې نه وایې چې د ملک زمنو سم په مزه وهلی دی ... !

ــ دغسې یې وبوله .

ــ که دغسې وي ډېر ښه شوي دي . ګوندې اوس پوهیدلی وي چې له ملکانو سره کلی کول آسان کار ندی .

په قشخانه کې ګونګسی پیل شو ، وزلوبان په نیالیو او د غالیو په بالښتونوکې سره وخوځیدل په سترګو او مخونوکې یې د استهفام او پوښتنې علامې راپیدا شوې .

اسلم وویل : هغه څه چې کېدونکې وو ، وشول . د حساب او کتاب وخت راورسید . ملک د قاسم په وجه د ده په بوډا پلار باندې ګوزار وکړ . نر سړی د ملکانو نه خوښېږي ځکه خو ملک شاسوار یو وار د کلي بیاله د قاسم په کروندګره راماته کړه او بیایې د ده کادانې ته اور واچاوه ، دریم واریې د دوی قولبې ته برابر شوی سخوندر په لور وواهه او دا دې اوس د دوست محمد اکا په وهلو د قاسم ګریوان ته مخامخ لاس درواچاوه .

ــ ښه ده اسلمه چې زما خبرو ته راغلې .

ــ قاسمه ستا سره بدي زما په سر کېږي په حقیقت کې ملک ستا پلار په پېښنه کې زه وهلی یم . هغه زما د غیرت او ایمان امتحان غوښتی دی ، آیا داسې نه ده ؟

ــ نه له سره داسې نه ده ، هغه زما پلار وهلی دی او د خپل پلار پور باید زه پخپله واخلم .

محمد نظر پهلوان وویل : دا غلط بحثونه پرېږدئ . لنډه دا چې یا به دکوز صیاد ټول خلک کلی پرېږدي او یا به ملک شاسوار له دغه کلي نه کډه کوي .

سکندر وویل : د ملک شاسوار بدی او غم لا پخوا زموږ پر تقدیرونو باندې لیکل شوی دی

پاینده وویل : سبا باید د ملک شاسوار تنور او نغری تود نشي .

اسلم وویل : که غواړئ لوی کار وکړئ ، لویه خبره مه کوئ .

مهردل وویل : اسلم پهلوان په وړاندې او موږ به ورپسې یو .

اسلم وویل : مهردل سم وایي دا گام به زه وچتوم .

ــ خبرې بس دي معلم صاحب جمعه خان دې د خبرو پرځای خپله دنبوره راواخلي او د غیرتی وزلوبانو زړونه دې خوشحال کړي .

قاسم ناڅاپي په کټ کټ وخندل . سکندر وپوښته : د څه لپاره خاندې ، څه در په یاد پول ؟

ــ وایي کلونه وړاندې دلته په قاسان کې یو دعوی جلب قرآن خور حاجی اوسېده ، هغه د یو غریب بزگر یوازینۍ باغچې باندې چې فقط هماغه یې لرله ، دعوی وکړه او په ابتداییه ، مرافعه او تمیز محکموکې یې دغه باغچه له خپل خاوند نه وگټله . بله ورځ چې حاجی د هغه بزگــر په باغچه باندې خپله یوې گره کړه د بزگر زړه سخت وردیده .

لاړ له خپل یو دوست څخه یې ښکاري ټوپک په امانت راووړ او راغی د باغچې پر دیوال یې ټوپک کېښود او دعوی جلب حاجی په نخه کې ونیو . د حاجی چې څنګه نظر په بزګر پریووت په تریږ ژبه یې ناري کړې : پام کوه چې لاس له ځایه خطا نکړې له ما څخه... له ما څخه څه غواړې...و...ووا...ووایه څه غواړې؟ دا په ... په لاس کې دې څه دی؟

بزګر د لاس ټوپک ته اشاره وکړه وې ویل : حلجي جانه دا خو ځلرمې محکمې قاضي دی ، دا بله‌ې نه خوري او د خپل شردي توپیر پې نشته . زما او ستا وروستی فیصله په ده باندې کېږي .

په دې کې بزګر لټ وواهه او د ټوپک غاښ چیچنو د حاجی غوړونه وڅوخول . سخوابنتې یې یوه خوا بله خوا سره ولاړې ، کچه غوندې خندایې په خوله راویړه شوه ، په درویزګره او ماته خوله یې وویل : ...پام کوه پام کوه ، لاس ماشې ته مه وړه ...له دې خبرې سره جوخت یې قولبه خلاصه کړه وې ویل : ما د ځلرم قاضي فیصله په سو او سترګو منلې ده او په قانع یم .

قاسم چې قصه دې ځای ته راورسوله وې ویل : زما په خیال چې ملك او ګلك هم د ځلرم قاضي فیصلې ته سترګې په لار دي .

ټولو یارانو د قاسم په خبره وخندل او سکندر وویل : والله که یې بې له له دې ځلرم قاضي نه په ځای هم کېنوئ .

اسلم ، قاسم او سکندر په ژوره توګه له سترګو تېر کړل او وې ویل : نن شپه به خوسحاله تېره کړو ، بیایې مخ معلم جمعه ته راواړوه او هغه یې مخاطب کړ : د مینې او مېړانې سندرې وبوله ، زموږ زړونوته د مصیبت او درد زغم وروبښه .

جمعه معلم دنبوره راواخیسته ، رامینځته شو او د زړه له سوزه يې دا سندره وویله :

روزی که فلک نشانه‌ای تیرم کرد
پیوست به زلف یارو زنجیـرم کرد
پیوست به زلف یار و پیچیده شدم
غمهلی زمـانه عاقبت پیــرم کرد

زرگــر بچه ز هوش بیهوشم کرد
دستم بگرفت و حلقه به گوشم کرد
گفتـم که ز ددرد گوش فریاد کنم
لب را بلبم نهاد و خــاموشم کرد

اندر سحری دو لاله ره شبنــم زد
اندر جــگرم زمانه تیــر غم زد
تیری که زده راست میـان جگرم
ایـام جوانی را فــلک برهم زد

یــاد تو کنم سر زبــانم سوزد
ترک تو کنــم تمام جانم سوزد
سریس که پیش کس نتانم گفتن
دردیست که مغزاستخوانم سوزد

یاد تو کنم دلـــــم شرر میریزد
ترک تو کنم لخت جگر میریزد
تا آخر عمر اگـــــر تو با من باشی
در کاسه آب من شـــــکر میریزد

هلکان تر ملا آذانه پورې د جمعه معلم او نورو شوقیانو ساز او سندروته ناست وو . سبایې چې اسلم اودس ته راووت ، آسمان لکه صیقل شوی لاجورد پاک او ښایسته شوی ؤ . پروني باران د غرونو په څوکو باندې د واورې تاجونه ایښي وو . ستوري لکه د الماسو غمي د آسمان پر نیلي خیمه باندې برېښېدل . هوا سړه وه لیکن اندراب د تېر باران تر اوبو لاندې ځان پرېولی ؤ او د ژمي هرکلی ته چمتو کېده . د اسلم یسنه خورا پراخه شوې وه، هغه د شرف او برې احساس کاوه . هغه پوهیده چې د ده د تللې آبرو د جبران وخت رارسېدلی دی . هغه دعا کوله : خدایه زما پښې ټینګې کړه ، زما په مټو کې د رستم قوت کېږده او ما د خپلو خطاوو او نیمګړتیاوو له مکافاتو څخه وبښه .

کله چې روڼ او طلایې لمر د اندراب په پرېول شویو غرونو باندې خپل طلایې چتر خور کړ ، اسلم د خپلو سپرو له ډلې سره کوز صیاد ته راغبرګ شو . په لاره کې جبار د هغوی مخې ته راپیدا شو او مهردل ته یې خبر ورکړ ، د اندراب ولسوال له خارنوال ، مفتي او د امنیه قوماندان سره په یوه ګڼه ډله کې برې درې ته وخوت . هغه له کوز صیاد نه صوفي محی الدین او له منځوی صیاد نه ملک مهردل هم برې درې ته ورغوښتي دي . زه د دې احوال له اخیستلو سره سم راوخوځېدم ...

مهردل چې د مشکي په سپرلو د کتار په لومړي سرکې له اسلم سره جوړه د صیاد په تاو راتاو لار باندې راروان ؤ ، له جبار څخه یې پوښتنه وکړه : چا دغه خبر تاته درکړ ؟

ــ سپایان راغلي وو او ډېر تلواریې ؤ . هغوی د دې سیمې د شاوخوا په ټولو ملکانو پسې رقعې راوړې وې او ستا رقعه موږ په خپله له هغوی نه واخیسته .

ــ آیا څه یې و نه ویل چې څه پېښ شوي دي ؟

ــ سپایانو خو یوازې دومره وویل چې په بره دره کې کوم څه پېښ شوي دي لیکن له دوی وړاندې یو دکاندار راغلی ؤ ، هغه وویل خنجر خان له کابل نه د راګرځېدو په لاره کې قتل شوی دی او پرون د هغه مړی د فج د شاوخوا غرونو په کومه شېله کې موندل شوی دی .

په دې ځای کې اسلم د جبار په خبرو ورننووت ، پوښتنه یې وکړه : آیا مړی خو د ارچې په ونه پورې نه ؤ راځوړند شوې ؟

اسلم د دې خبرې سره جوخت مهردل ته وروکتل او دواړه یوبل ته سره موسکي شول .

په دې مینځ کې قاسم په لوړ آواز وخندل او وې ویل : وزلوبان او ښکاریان خپل کسات چا ته نه پرېږدي . فیروزې خورکۍ رښتیا ویلي ؤ چې اسلم به بیا صیاد ته راشي او زما د مظلومیت بازخواست به وکړي . هېڅوک د هغه له انتقام څخه خلاص نشي ... او دغه مرتد خنجر به غره ته وخېژوي او دارچې په ونه پورې به یې راځوړند کړي .

ټولو سپرو ایران ایران یو بل ته وکتل خو مهردل په قاسم باندې مخ راواړاوه او هغه ته یې د غوسې په غاړه وویل : قاسمه ولې خپله خوله په واک کې نه ساتې ، د دې خبرو ضرورت څه دی چې ته یې کوې ؟

اسلم پهلوان د مهردل خبروته ورننووت ، هغه یې مخاطب کړ : نه مهردله ستا اعتراض سم نه دی . قاسم په حقه دی ، د هغه د خولې د پټولو وخت تېر شوی دی . خنجر ما پخپله وژلی ، اسلم په داسې حال کې چې خپلې دواړه منګولې یې سپړلې وې لو په ځیر ځیر یې هغو ته کتل زیاته یې کړه : په همدې منګولو مې د هغه ترۍ ونیوله او په همدې لاسونو مې هغه د ارچې په ونه کې راوځړاوه ... او د فیروزې پیشګویې مې رښتینې کړه . زه کوم غل ، قاتل او ظالم نه یم ، زه یو برحقه کسات اخیستونکې یم . کاشکې ما کولی شوی چې پر خپلې غوسې او روا غضب باندې پښه کېږدم او دومره نرم شم چې خپل مظلومیت وزغمم ، ما به کړی وای . زه اعتراف کوم ما نشو کولای د خپل غم ترخه زهر پخپله وچښم . زه د انتقام پر واټ وخوځېدم او تر پایه پر دې لارې پر مخ ځم . که مېړونه چوپیا غوره کړي او مېړانه ویده شي د کلیو ګیدړان او شغالان به په زمریانو کې د غلامۍ کړۍ واچوي . مروت او شرافت به زموږ له زړونو څخه کډه وکړی

اسلم انډیوالانو ته مخ ورواړاوه وې پوښتل : تاسې زما په خبرو کې څه وایاست ؟

ټولو لکه همیش په یو آواز وویل : موږ په تا ویاړو .

قاسم وویل : تا د مېړانې او سیالۍ دود تازه کړ .

معلم جمعه وویل : ته د صیاد وجدان یې .

مهردل وویل : ته د پاکۍ او مېړانې ساتندوی یې ، موږ ستا لښکر یو ته په موږ باور وکړه .

په خبرو خبروکې هغوی کوز صیاد ته راغلل او مخامخ د اسلم انګړ ته ننـــوتل . د کلي ځوانـــان او نیږدې ګاونډ دوستان او یاران هلته

راټول شول . جبار اسلم ته خبر ورکړل چې ملک ساشوار د کلا او باغچې ورونه او کړکۍ پسې تړلې . د مهمانخانې ، د کلا د دروازې په سر بالا خانه کې یې وسله‌وال سړی کېنولي دي او د کلا په چمبر پورې متصل د وښو د جترگي په بامونو باندې یې خپل وریرونه او پلویان د باز گل او بهرام قولته زمن ، مزدوران او خپل ژرنده گري له لاټیو او سوټیو سره کېنولي دي . دوه کسه نور د هستوگنې په بامونو باندې غلي شوي ځار او پیره کوي . دکور نه د باندې د ملبند د جارگي چیله یې تړلې ده او داړونکي سپي یې له کلا نه راایستلي او په دې احاطه کې یې خوشې کړي دي . له پرون رادورې یوازې یو وار سبا وختي یې دروازه خلاصه شوه او گلک ترې راووت . هغه په ډیگلان ډیگلان خپل کور پلو وځغلېد او نیږدې نیم ساعت وړاندې پخپل یابو باندې سپور په ولسوال پسې درې ته وخوځېده . آوازه ده چې د درې خنجر خان چا وژلې دې او د ولسوالۍ ټول ماموران همد نن سبایې پورته تللی دي . زموږ صوفي محی‌الدین یې غوښتې وو ، موږ مشوره ورکړه چې در دې شي هم به د هغه ځای حال راوړي او هم به گلک زموږ تر شا دروا‌غجني او بویني خبرې نه کوي .

اسلم چې ډېر وخت له کلي لرې ؤ ځان یې د کلي په وضعیت پوه کړ . وروسته‌یې جبار ته وویل : ته او ارسلا سر له سبا ملاآذانه زموږ کلي ته د تګ راتګ ټولې لارې وتړئ ، یاران دوستان همدا نن شپه د لارو او کوڅو په تړلو او ساتلو وگمارئ او هر یوه ته د خپلې ذمه‌وارئ ځای او مقصد وروښایاست . له پلیو هلکانو سره سپاره هم وټاکئ ، بزکش زلمیان دې خپل آسونه او وسلې تیارې کړي او شپه دې هم دلته زما په کــــور یا د کلي په جومــات کې تېره کړي . مهردل دې همدلته

زموږ په کلي کې پاتې شي که چېرې کومه پوښتنه یا ستونزه درپیدا شوه ، له هغه نه به پوښتنه وکړئ . د ملک شاسوار د کلا شاوخوا به داسې ساتئ چې مرغۍ هم له هغې نه د وتلو او ننوتلو لار پیدا نکړي . که د ملک سړی تښتېدل لاره به پې ټړئ ، نیسئ به یې او په جومات کې به یې تر ښارمې لاندې ساتئ . سبا یې وخته به دوولس بزکش آسونه چې د مهردل مشکي ، تور غوږي سمند او د صوفي محی الدین کرنګ به پکې وي زموږ سپرلو ته چمتو کوئ . په کلي کې به د نن ماسپښین د لمانځه نه وروسته ښځې او ماشومان له کورونو څخه نه راوزي . دوست محمد اکا هم دا اوس د نهرین او یا سیاه درې له لارې د علاج په خاطر بغلان یا پلخمرې ته ولیږدوئ . ټوپک ، چړې ، تور۹ ، سیلاوې ، یومان او سوټې چې د جګړې لپاره مناسب وي له کلي نه راټول کړئ او په مناسبه توګه یې زموږ پر هلکانو وویشئ . زموږ هېڅ انډیوال ته اجازه نشته چې له همدې شېبې نه وروست تش لاسې وګرځي . د قاسم په کور باندې بې له ځنډه دوه تنه پیره کړئ . معلم صاحب جمعه خان او دوه تنه ورسره ښوونکې د ډوډۍ تر خوړلو وروسته له صیاد نه رخصت کړئ

په دې خبره باندې معلم جمعه خوابدي ښکاره کړه ، خو اسلم بې له ځنډه هغه ته وویل : معلم صاحب وخت تنګ دی ، حاجت اعتلراض ته نشته . موږ فتنه کوو او فتنه د معلمانو او میرازایانو کار ندې .

د ماسپښین په دوو بجو اسلم ملګري وزلوبان پخپل کور کې راټول کړل . او د دوې له مینځه یې د دغو کسانو نومونه واخیستل : محمد نظر پهلوان ، سکندر ، قاسم ، آدینه ، ارسلا ، جمال الدین د صوفي محی الدین زوی ، باز ګل او امیر ، روزی او ګلاب. دغه نه تنه

به له ما سره یو ځای د ملك شاسوار پر کلا ورځغلي ، زه او قاسم به ډزې کوو . امیر او بازگل به کلا او کور ته اور اچوي . محمد نظر پهلوان او سکندر به زما او قاسم ملاتړ کوي . دا نور به زموږ کومکیان وي ، که په موږ کې ځوک زخمي او یا شهید شي ، هغوی به پورته کوي ...

مهردل په اسلم باندې اعتراض وکاوه : دا فیصله سمه نه ده .

ــ څه نقص لري ؟

ــ زما او ځینو نورو ونډه معلومه نشوه .

ــ ته به له نور سره کلا ته مخامخ د لویې لارې نه وربر موضع ونیسې . که چېرې پر موږ د چا مټ بر شو او یا موږ پر شا راغلو په موږ پسې به رادانګي او زموږ ملاتړ به کوي او پر دې سربېره به د کلي نظم ساتې او لارې به ځارې ا. که چېرې موږ دښمن په مخه کړ او د ښامار ځاله وسوځوله تا به ځان دریم ګړی کړې او د حکومت ځواب به وایې .

ــ نه نه ، زه دې ډېر سپک تللی یم ، په ما دې مېړانه نه لورېږي . زه به هېڅکله د خلکو پیغورونو او ملامتیا ته ځان ورمکړم . مېړانه او عافیت غوښتنه دوه جلا لارې دي . که زه د ملکانو په پله تلای ، دغه بهادران او ننګیالي به مې د ملك یوسف غولي ته نه رابلل او تاته به مې د خپل زړه کړکۍ نه خلاسولې . تا زه سپک وتللم ، تا ښه کار ونکړه اسلمه ...

قاسم د مهردل خبرې تائید کړې وې ویل : وخت تنګ دی حساب به اوس سره نه کوو . لیکن زما خوښه دا ده چې مهردل دې خپل یوولس ډزې جـــرمني ټوپک واخلي او له ما او تا سره دې یو ځای

د ملک د وژلو په کار کې مخامخ او بربنډ شریک شي .

په وزلوبانو کې گونگسی راپیدا شو . خو اسلم هغوی ته وویل : د شخړې او مناقشې وخت تېر دی د قاسم‌قیصله سمه ده په دې صورت کې دې سکندر د مهردل وظبفه په غاړه واخلي او د سکندر پر ځای دې بازگل له امیر سره کلا ته اور واچوي او مهردل دې خپل مشکي وځغلوي . زه به تور غوږې سمند او قاسم دې د صوفي محی‌الدین کرنگ واخلي ، نر یاران به خپل آسونه وځغلوي ، د کار تر خلاصېدو وروسته دې ټول سپاره هغوی چې له ما سره د ملک‌شاسوار کور او باغچې ته ننوزي ، زما د ځغاستو لیکه دې راپسې تعقیب کړي .

ټولو وویل : سمه ده .

سبا یې کله چې سپیدو د هندوکش د پاسه د اندراب په لاجبری ختیځ باندې د لمر د سلطان راتګ ته د نور سپینه پټاره وغوړوله او د درې په او راتاو کې د آذانونو نارې خورې شوې د صیاد بزکشان له خپلو زین کړو آسونو سره ولاړ د انصاف او نیاو د پاللو په هدف کسات اخیستلو او وینو تویولو ته چمتو شوي وو .

اسلم د سپرېدو بولۍ ورکړه او له دې سره متصل یې قاسم ته وویل : دملک د کلا په لور یو ګړندۍ ځغاسته وکړه . د کلا د باندې د مابند جارګي سپي ووله او بې ځنډه د پټیو له مینځه د کلا له هغې بلې خوا څخه د باغچې شا ته ځان ورسوه . تر څو زه او مهردل در رسېږو ، د باغچې په مورچه ډزې کوه او موږ ته پوشش راکړه . موږ به له هماغې خوا نه په کلا برید وکړو ، د ملک کسان به له موږ سره اخته شي . د کلا له دې لورې به بازګل او امیر د دغو نورو ټولو ځوانانو تر ملاتړ لاندې د ملک کادانې ، د خسو زېرمې ، قشخانې او په جارګی کې د ښارویو غوجلې ته اور واچوي ورپسې به د کلا لویه دروازه ، ژرنده ، د کلا له دروازې سره متصل د غلې ګدام وسوځوي او په پای کې به کلا ته ورننوزي او پر هر څه به اور ولګوي . هر شئ چې مخې ته ورځي سوځې به یې او خرابوې به یې . کوم نارینه چې مقابلې ته راوزي او لاس درباندې پورته کوي مړه یې کړئ خو په ښځو او ماشومانو باندې لاس مه پورته کوئ . که مو وس رسېده جومات ته یې ولیږدوئ . لوټ او تالان به نه کوئ ، د ناموس ضرر به نه رسوئ ، د وژل شویو سره به بې حرمتي نه کوئ او شخړه هر څومره چې امکان ولري باید ژر خلاصه شي . آیا چمتو یاستئ ؟

ټولو وویل : هو چمتو یو !

ــ قاسمه یاالله !

قاسم تومانچه د گوپیچې په ججوري کې واچوله او پنځه ډزې ډک ټوپک یې په کیڼ لاس سنبال کړ . کرنګ یې پونده کړ او لکه لاټو د ملک د کلا په لورې د جومات تر شا په تاوراتاو کوڅه کې وځغلېده . کله چې د سپیو شور او د قاسم د پنځه ډزې لومړني ټک غځونې وکړې ، اسلم تور غوږې پوند کړ او مهردل ته یې د ځغلېدو اشاره ورکړه . په تنګه لاره کې د وزلوبې د میدان د دیبانو د منډو دربهار د کوڅې او کورونو رغولي ولرزول او د کلیوالو زړونه یې چې خونړیو پېښو ته سترګې په لار وو ، ونځول . د کلي ښځې ، ماشومان او بوډاګان او ټول هغه کسان چې په کورونو کې پاتې وو او د باندې راوتلو نه منع شوي وو د کورونو بامونو ته وختل او د پېښو ځار وشول .

امیر او بازګل د کراسینو له ټیمانو سره د ملک مالبند جارګي ته په داسې حال کې راورسېدل چې ورپسې د کلي د زلمیانو ډله له لاټیو او یومانو سره پسې لیکه شوې وه ، هغوی د دیوالونو په پنا کې لکه سپرغۍ له دغه او هغه خنډ نه اوښتل او په داسې حال کې چې د کلا له بامو او مرچو څخه ډوې پې کېدې ، دوی په موریو ، دروازو او انبارونو کې تېل شیندل او اوریې وراچووه .

اسلم او مهردل په یوه پراخه دایرهکې په ځغاسته د ملک د کلا دور راوواهه بلې خواته وروګرځېدل اوله قاسم سره یوه لورې ته شول . هغوی په ځغاستو کې د باغ د دیوالګی له شا څخه چې د ملک په کور او ټاټوبي د لارې له مقابل لورې څخه راګرځېدلي ؤ ، پر بالاخانو او بامونو ډزې پیل کړې او د ملک د جنګي کسانو پام یې د جارګي له لورې چې د کلا په هغه بله خواکې واقع ؤ ، ځانته راواړاوه .

د ملک زوی میرزا په منډه له بامه راکښته شو او خپل پلار ته چې هلته د کور د برنډې لاندې ټوپک په لاس په برزو او لنډه برکې کوټه کې ، لکه لړم ژر ژر دې خوا او هغې خوا ته یې قدم واهه ، وویل : ابا ، اور ، اور جارگي ، کادانه ، د خسو کوټه ، قشخانه او د مزدورانو خونه سوځي . خلک د کلا د مخې په کنډرونو رااوښتي دي ... لرنه ، سوتی ، یومان ... د میرازا شونډې وچې شوې او سترگې یې رډې رډې راوتلې وې . ملک چې هېڅکله یې د اور لگیدو د احتمال په باره کې فکر نه ؤ کړی ، سخت وارخطا شو . ځای په ځای ودریده گوتې او لاسونه یې سره وسرویل ، په پښو کې یې لرزه پیدا شوه او لنگوټه یه پر سر باندې لکه د زړې لارۍ کاربیتر په خوځېدو راغله . واقعي خطر یې احساس کړ او تېره چاړه یې په اوبو کې له ورایه ولیده او لکه په زړه لگیدلې زخمي وځگویده : وای ، وای ... برباد شوم هله اسفندیار راوبوله ...

هغه په مورچه ناست دی ډزې کوي ... که خپل ځای خوشې کړي د اسلم لچکان به له هغه لورې مخامخ په کور راننوزي .

د ملک رن□ الوتی ؤ ، شونډې او د لاسونو گوتې یې ببواکه رپیدلې ، قرار یې نشو ورکولای ، غوښتل یې څه ووایې خو تر خولې یې نه شو راایستلای . په پای کې یې زړه نا زړه د میرزا په اوږه لاس کېښود هغه ته وویل : راځئ پور ورته ومنو ، اسلم سوله غوښتونکې سړی دی ، وبه یې مني .

ــ ابا د دې خبرو وخت تېر دی .

ــ راځئ قرآن ورته شفیع کړو .

ــ دا لا یوه لاره ده .

ــ نو جومات ته ورمنډه کړه قرآنونه راواخله ...
ــ هلته نه‌شم رسېدلای لارې یې بندې کړې دي .

په دې کې ګل‌میر ژرنده ګړی چې د کلا د وره پر سر بالاخانه کې یې مورچه نیولې وه ، چیغې کړې : ملکه ... ملکه د کلا دروازې اور واخیست .

ملک وارخطا راغبرګ شو . ویې لیدل چې دروازې د هغې چوکاټ او سرطاقونو اور اخیستی دی او پر بالاخانه سرې لمبې راچاپېر شوې دي . په ملک باندې دنیا تنګه شوه ، راوګرځېده، منډه یې واخیسته د دروازې مقابل لوري ته یې د خاورې د کوټې تر شا مورچه ونیوه او په سوې دروازه باندې یې د دښمن د احتمالي راننوتو مخه ونیوله .

اسفندیار ، بهرام قولته او عزیز د ملک شاسوار کشر ورور په باغچه کې د پټیو او بیدیا په استقامت مورچه نیولی وه او په اسلم ، قاسم او مهردل باندې چې غوښتل یې د روزل شویو آسونو په سپرلو باغچې ته راواړوي او له همدې لارې کلا ته ننوزي ، ډزې کولې . اسلم او ملګرویې د ځان د ساتنې لپاره آشونه ځغلول ، مانوریې کاوه او د اسفندیار پر تیرکشونو یې تعجیزي ډزې کولې او په پای کې اسلم تور غوړې سمند د اسفندیار د موضع په مقابل لورې له باغچې نه په یوه ټوپ راواړاوه او په سغاستویې د اسفندیار د شا له لورې هغې دروازې ته ځان ورساوه چې باغچه یې له کلا او کور سره تړله . د نظر پهلوان ډله له مقابل لورې د کلا په سوې دروازه باندې کلا ته راننوته او د کلا د ساتونکو روحیه یې چې د بام پر سریې مورچې نیولې وې ، ماته کړه .

اسفندیار په راغلي خطر پوه شو . یقین یې راغی چې کـــار خلاص

دی خو نارینه سړی ؤ ، د کمزورتیا او تسلیم روحیې غلبه پې ونکړه .
له ځان سره یې فیصله وکړه چې تر وروستۍ سلګۍ به جنګیږي . قاسم
او مهردل هم آسونه په ځغاستو او ټوب وهلو پر دیوال راواړول او
باغچه د وروستۍ پریکړې او فیصلې میدان شو . د باغچې جنګ ډېر
خونړی شو . د بزآشو آسونو په رااوښتو د سکندر او اسلم د ټوپک والو
تر مینځ هیڅ خنډ او حایل پاتې نه شو . هغوی مخامخ یو په بل ډزې پیل
کړې د اسلم دوی وضعیت چې په سپرلویې جنګ کاوه تر مقابل لوري
زیات خطري ؤ . اسلم په اسفندیار باندې غږ کړ : که غواړې ژوندې
پاتې شې ټوپک واچوه مخ د باغچې دیوال ته وګرځوه او لاسونه پورته
کړه !

ــ زه مور داسې سست نه یم ټړلی چې شغالانو ته تسلیم شم .

ــ چې داسې ده نو له لښتو او ځځلو نه راووزه او زما سینه په
نخښنه کړه .

هغه راووت پنځه ډزې روسي ټوپک په لاس ، سره پهلوی لونګۍ
په سر ، توري جګې موزې او څړووړین چکمن په غاړه ، ملاستونی او د
کارتوسو غاړه کۍ پې د پاسه ، مخ اسلم ته یې وویل : آس ودروه ، فیر
وکړه .

ــ زهع ښکاري یم په منډه کې ګیدړ ولم ته وار ړومبی کړه چې
بیا د مقابلې وخت نه درپاتې کیږي .

اسفندیار پنځه ډزې خوله اسلم ته سمه کړه خو هغه د آس جولان
ګړندې کړ او د اسفندیار ګوزار په هدف و نه لګیده ورپسې اسلم
د آس په منډه کې هغه د تندی د پاسه د وروځو تر مینځ پخپل برناو
ټوپک وویشت او په چټکتیا د شا له دروازې له باغچې نه د ملـک کلا

ته ورننووت ، ورپسې قاسم او مهردل د اسلم لار تعقیب کړه او د کلا په مینځ کې د نظر پهلوان له ډلګۍ سره چې په سوې دروازه کلا ته راننووتي وو ، یو ځای شول .

امیر پهلوان د ملک د کور او باغ د کېنو دیوالونو په پناکې د ژرندې دروازې ته ځان ورساوه او په ژرنده او غنمو پاکولو په دالان او دروازویې اور ولګاوه . د ژرندې د وتې له اوږې څخه یې د ملک د باغچې په صحن او د کلا د بامونو په شمالي څنګ باندې د موش کش ګوزارونه پیل کړ .

بازګل چې په ښي لاس لګیدلې ؤ د ملک د کلا دروازې ته نیږدې د کور اصلي عمارت لومړنۍ خونې ته یې اور واچاوه . ښځې او ماشومان له کوټو نه انګړ ته راتوی شول او لکه د محشر صحرا هر چا ځان ځان ته امن او پنا لټوله او چیغې یې وهلې . د ملک سړي او ګوندی‌ماران د ده د کور د بام له مورچو څخه چې زیاتره هماغلته ځای په ځای شوي وو ، د تیښتې او ګوشه کېدو لپاره زینو او دیوالونو څخه راښوه دول . میرزا د کور وروستي دهلیز ته چې د مور د هستوګنې خونه یې هلته واقع وه ، ننووت او له هماغه ځایه یې کله کله په غلا سر رایوست او ډزې به یې کولې او بیا به ببرته پټیده . ناڅاپي د اسلم سترګې پې پریوتې ، وروځغلېده ، د دهلیز په خوله کې یې له آس نه ځمکې ته ودانګل او سمدستي په دهلیز ورننووت . کاته یې چې د میرزا مور په خپل زوی باندې پړونی راغوړولی دی . اسلم د ټوپک خوله ور ټیټه کړه خو د میرزا مور چې لاسونه یې په زوی اچولي وو او رېږدېدله په اوښکو ډکو سترګویې له اسلم نه وغوښتل : زما زوی مه وژنه ، زه همدا یو زوی لرم .

ــ زه هم له مور نه یو زوی پاتې یم او هغه په ما ډزې وکړې .
ــ نور به دې نه ولي . هغه ما ته راوبخښه ، دعا به درته وکړم .
اسلم لاس ځمکې ته ټيټ کړ ، د ميرزا اچول شوی ټوپک يې راجګ کړ ، له دهليز نه راووت او هغه يې له کړکۍ نه هغې خونې ته ورواچاوه چې اور يې اخيستی ؤ .
ملک شاسوار چې زبون يې وهل شوی او سر تر پايه ريږدېده او د تيښتې وخت يې نه و پيدا کړی ، ټوپک په لاس د کلا خالي دور ته ولاړ ؤ . قاسم چې د کلا په انګړ کې ښکته پورته ځغلېده نظر يې په ملک ولوېده ، کرنګ يې ودراوه ، له زين راښکته شو ، دوه درې قدمه يې د هغه په لور وروچت کړل ، ټوپک يې ځنې واخيست ، د هغه لټ يې وواهه . کاته يې چې ججوری يې ډک دی ، بيا يې د ټوپخ دروی بوی کړ ، پوه شو چې نه دی چلېدلې ، هغه ته وويل :چې ډزونه دې نه شوی کولای ، ټوپخ تې ولې ډک کړې ؤ ؟
ــ قاسمه زه په تاسې ملامت شوی يم . ښايې کبر به مې کړی وي او دا کبر خدای رازوال کړ . اسلم نارينه سړی دی ، دا زما کور دې نه خرابوي او ما ته دې وخت راکړي چې زه د هغه پوره او مناسب عذر وکړم .
قاسم کټ کټ وخندل او ورپسې يې د غوسې په توګه سترګې سره غونټې کړې وې ويل : ملکه ستا د توبې او د اسلم د عفو وخت تېر شوی دی . د تا رنګو ظالمانو بدمرغي دا ده کوم وخت چې د خپلو بديو او تيريو پټې کول غواړي بيا وخت نه دي ورته پاتې او څه لاس ته نه ورځي .
ملک خپلې سړې او وچې شونډې د څه ويلو لپاره وخوځولې خو

قاسم د ټوپک تې وواهه او په ډېر هیبت او لوړ آواز یې پې کریغه کړه : مکاره ګیدړه نور بس ده . کلمه ووایه .

اسلم چې د ملک د کلا په مینځ کې یې د اور او لوګیو په ناتار کې په تور غوږې سمند باندې مانور کاوه او تعجیزي ډزې یې کولې په قاسم باندې نارې کړې : دا ستا حق نه دی چې لاسونه د ملک په وینه سره کړې ، دا خو زما واجب دی چې کبر راسره شوی او د ناموس زیان رارسېدلی دی . په دې کې د قاسم په لورې را نژدې شو ، لاس یې رااوږد کړ او د ملک شاسوار ټوپک یې له هغه نه واخیست او ملک شاسوار ته یې وویل : ما نه غوښتل چې وینې په وینو پرې مینځم ، خو تا پخپله دې ځای ته راورسوله . تا زما ښځه له ما واخیسته ، تا زما کوچنۍ ځالې ته دې اور واچاوه او کله چې ما عدالت وغوښت او د خپل حق لپاره مې شور او فریاد وکړ تا زما په خوله باندې لاسونه ونېول او زما غاړې ته دې بله چاړه تېره کړه ، زه دې مېړنتوب او هوډ پاللو ته مجبور کړم . هر لورې ته مې لاس واچاوه چې د پیغورونو او کرکې بار په زړه سپک کړم لیکن تا پر ما باندې ټولې لارې چارې وتړلې او زما په زړه کې دې کسات اور تازه وساته .

ملک شاسوار په ډېر ماته خوله وویل : ښایې د خدای به رضا نه وه چې زما او ستا زړونه سره تاوده شي .

ــ د ظالمانو یوه نخښه دا ده چې د خپلو تیریو او کبرونو قصو تل د قضا او قدر په غاړه اچوي .

ــ راځه چې همدا اوس یې دوه په دوه همدلته سره فیصله کړو .

ــ اوس چې اسفندیار غوندې زړه‌ور سپور ووژل شو ، د روغې جوړې ضرورت نور څه پاتې دی ؟

ملک د اسفندیار د مرگ په اوریدو ببواکه چیغه له خولې وایسته :
اسفندیاره زویه ، په مرگ تللیه زویه ...

اسلم د ملک له چیغې سره سم هماغه د ده ټوپک ورواړاوه او ججورې یې د ملک په ټټر کې خالي کړ او بیایې د هغه په بې ځانه جسد باندې وروغورځاوه او له ځان سره یې وویل : خدایه ستا شکرانه اداء کوم که مې زیاته کړی وي بنده یم ما وبخښه . ورپسې تور غوړې ته پونده ورکړه ، هغه په دوو پښو ودریده او بیایې وړاندې ودانگل او د کلا څخه کوځې ته راووت . سپاره د کلي په تاوراتاو کې په اسلم پسې لیکه شول او لکه د ځیلي لیوان د یخ وهلو کروندو په مینځ کې د غرونو په لور وځغلیدل .د شمال له لورې د غرونو په غاړو د ژمي وریځې راماتې شوې وې او هندوکش د ځغلنده وریځو تر یرغمل لاندې خپل ژمنی برم او ابهت بیا موندلی ؤ . اسلم د وروستي ځل لپاره د غرونو له لمنو څخه خپل محبوب کلي ته چې د ملک شاسوار د کلا په لوگیو پټ شوی ؤ ، راوکتل ، نرۍ موسکایې په بریتو راویړه شوه او له ځان سره یې وویل : موږ حق غوښت چا را نه کړ . د عدالت لپاره وجنگېدو خپل هوډ ته ورسېدو . یوازې هغه کسان چې د مصیبت د زغملو لپاره لوی زړونه او وچت عزمونه لري ، حق او هوډ ته رسیدلای شي .

موږ خپلو غرونو ته ځو ، غرونه د دنیا د ښایست او جلال برجونه دي ، که انسان پر هغوی تکیه شي ، هغوی د انسان باور او هوډ نه ضلیع کوي .

پای